د ۱۳۵۱ لمریز کال
د غويي میاشت
دوهمه گڼه
پر له پسې گڼه ۱۴۰
د تاسیس کال ۱۳۳۹

# کندهار
مجله
د اطلاعاتو او کلتور

میاشتنی خپرونه





اتا بلو چې د هیواد نامتو رسام ښاغلي غوث الدین رسم کړی او د کندهار په موزیم کې ده، هغه منظره ښيي چې اعلیحضرت احمدشاه بابا په عمومي محضر کې د غنو میړانه ستایی او ددې د پښتني احساساتو په بدل کې یو کاریز چې تر اوسه د هغې په نامه یادیږي ور بخښي

(د کندهار د اطلاعاتو او کلتور عکاسي)

د یوې گڼې بیه ۳-افغانۍ

# په کندهار کې د وینو

## د بانک بنسټ کېښوول سو

د رضاکارو میرمنو د ټولنې د عالي رئیسې والاحضرتې شهزادۍ بلقیسې د هدایت په اساس په یو ملیون افغانۍ بانګه د سوداګرو د اعانې په توګه په کندهار کې د وینو د بانک د بنسټ ډبره د روغتیا د وزیر پوهاند دکتور محمد ابراهیم مجیدسراج له خوا د همدې ولایت د عامې روغتیا په محوطه کې کېښوول سوه.

د روغتیا وزیر د تاداو ایښودلو په ترځ کې د ذکر سوي بانک ارزښت بیان کړ او د سوداګرو د مرستې څخه یې خوښي وکړه.

په مقابل کې د کندهار والي ښاغلي سلطان عزیز ذکریا او د دغه ولایت یو سوداګر حاجي حبیب الله د هر ډول مرستو وعده ورکړه.



ښاغلی سراج په داسې حال کې چې د وینو د بانک د ودانۍ ډبره ږدي

# د کورنۍ د لارښوونې کلینیک پرانستل سو

په کندهار کې د کورنیو د لارښوونې کلینیک د رضاکارو میرمنو د ټولنې د آمرې میرمن فرشته ذکریا له خوا د درې رنګه نوار په پرې کېدو سره پرانستل سو.

په هغه غونډه کې چې په همدې مناسبت د ثور په ۱۹ نېټه د ښاروالۍ په سالون کې جوړه سوې وه د کندهار والي ښاغلي سلطان عزیز ذکریا د یوې وینا په ترځ کې د حکومت د دې ګټور اقدام ستاینه وکړه او په دې باب یې د دغه ولایت د خلکو مرستې د قدردانۍ وبللې. دغه رنګه په دې محفل کې د عامې روغتیا عمومي آمر میر فیروزالدین، مولانا بشار، مولوي عبدالرب فیاض او ښاغلي قمري اڅکزي یو په بل پسې ویناوې وکړې.



ښاغلی سلطان عزیز ذکریا د وینا په حال کې لیدل کېږي

(د کشور عکاسي)



میرمن فرشته ذکریا د نوار د پرې کېدو په ترځ کې




د ۱۳۵۱ کال دغوایي میاشت

# د اسلام د ستر پیشوا

## زوېږدنه

څو ار لس سوه کاله پخوا په نړۍ کې یوه داسې ستره پېښه منځ ته راغله چې نړۍ ته ئې تکان ورکړ او دا دې تر اوسه په ملیونو مسلمانان د هغې نمانځنه او په ډېر قدر او احترام یادونه کوي او تر څو چې دا دنیا وي تجلیل به ئې کېږي .

دغه ډېره مهمه او تاریخي پېښه د اسلام د ستر او اولوالعزم پیغمبر حضرت محمد رسول الله (ص) مبارکه زېږدنه ده چې په (۶۰۰) میلادي کال د لومړۍ خور په دوولسمه نېټه د دوشنبې په ورځ واقع شوه او یو داسې عالیمقامه انسان، نابغه شخصیت، لوی پیغمبر، د بشریت ناجي او ستر مصلح دنیا ته راغي او د خپل مبارک ژوند په څلویښتم کال ئې د جهان سره د بشریت د نجات ، سمون د دنیا او آخرت د نیکمرغۍ د پاره ستر اسلامي قانون منځ ته راووړ چې په څلور سوه کاله کې د هغه په سیوري کې په سلهاو ملیونو مسلمانانو بهترین ژوند تېر کړ او اوس هم له دغې لارې څخه پر مخ تلای شي .

قرآن مجید چې د اسلام پر ستر پیغمبر حضرت محمد مصطفی (ص) باندې د جهان د حقیقي او لوی واکدار له خوا راغلی یو داسې جامع او ستر کتاب دی چې د هغه په لارښوونو او احکامو عمل کول انسانان په دنیا او آخرت کې د بهترین ژوند خاوندان کوي او د بدبختیو او فسادونو څخه ئې ژغوري .

د نیکه مرغه موږ مسلمانان او څه د پاسه دزرو کالو راهیسې د دغه ستر الهي دین په رڼا کې ژوند کوو او په اوسني پر مخ تللي عصر کې غواړو چې د اسلامي قانون په سیوري کې د عصري او مدني ژوند د ټولو ښېګڼو، ساینسي او تخنیکي پرمختګونو او وسیلو او سایلو څخه ګټه واخلو او لکه څرنګه چې د غو زرو کلو کې مود اسلام په رڼا کې ځلانده مدنیتونه او بهترینې دورې تېرې کړې دي وروسته تر دې هم د قرآن عظیم الشان



په مدینه منوره کې مبارک نبوي مرقد


## د کندهار مجله

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي مؤسسه
د مسؤل مدیر وکیل: غلام محی الدین (ایوبي)
مهتمم: عبدالکریم (طالب)

لیکونکي هیأت

عبدالقدوس «نجیب»
احمد «راشد»
عبدالمنان «امین»
پیغله قمره «اڅکزۍ»

طباعتي همکار
څلمی «بارک»

تاریخي، کلتوري، ادبي او اجتماعي

اداره: د شهیدانو واټ
د ټلیفون نمبر ۳/۸۴


په پیروي د ښه او نیکه مرغه عصري او مترقي ژوند پېر او ته څانونه ورسوو .

ژوندی دې وي اسلام او لوړ دې وي د اسلام تر بیرغ لاندې ګران افغانستان . آمین

(۵۱خ)

کندهاري سړبن :

# د تاریخ یوه ګوښه

## د اشوکا کتیبه چې لومړی وار
## په کندهار کې ومیندل شوه

د کندهار زاړه ښار ته نږدې په سرپوزه کې د چهل زینې و ختیځ پلو ته له عمومي سړك څخه د څو ګامه لیري والي په اندازه،

د خر کادانو د خاورو بارولو په ترڅ کې د آشوکا د فرمان کتیبه چې په یوناني او آریکو ژبه

سره پر یوه لوېه تیږه باندې لیکل شوې وه و میندل شوه. چې د دغې کتیبې یوناني برخه فرانسوي ختیځ پوه «موسیو شلوم بوژي» داسې ترجمه کړې ده:

په ورو ستنیو لسو کلونو کې «پیو داسس پاچا» انسانانو ته د دیانت اصول ور وښوول او له هغه

وخته څخه ئې دوی د مځکې پر مخ باندې متدین او مسعود کړل. پاچا د ژوندیو مخلوقاتو له وژلو څخه لاس واخیستی او نورو ښکار

یانو او په تیره بیا د پاچا کب نیونکو د کبانو ښکار پر مخ پرېښوی د ځینو کې عقیدې نه لرونکي د خپل

ضعف په حدودو کې وا وښتل. او له ورکړې د سپین ږیرو او مور و پلار فرمان وړونکي شول په سلې دې څخه به دوی په دې رو په سره له

خپله خواږه پوره ژونده څخه ګټه واخلي.

د هغه د «ویکلي ریویو» اخبار د ۱۹۶۱ کال د اکتوبر د دیر شمی نیټې په ګڼه کې د دې کتیبې په باره کې د آشوکا د فرمان تر عنوان لاندې داسې لیکلي دي:

زموږ یو هیئت چې د یو انګ چونګ د (ژینو) د میندلو په غرض د مې د (۲۹) او د جولایي د میاشتې د (۲٤) نیټې په منځ کې افغانستان ته سفر وکړ



دغه عکس د اشوکا د کتیبې متن ښیي

خو سره له ډیرو تکلیفونو ئې د هغه مملکت په جنوبي او جنوب غربي سیمه کې د نوموړو (ژینو) څرك پیدا نه کړ. مګر د آشوکا کبیر د فرمان میندلو ئې چې په «آریك» یا «سیریایي» او یوناني ژبه لیکل شوی و ، ډونه ډیر خوشحاله کړه او په دې سره د هندو افغان تاریخ لاښه روښانه شو. د آشوکا د فرمان دا کتیبه د کندهار په زاړه ښار کې

چې تاریخي نوم ئې «اسکندریه» یا «ارکوزیا» دی د بابر و چهل زینې ته نیږدې د سرپوزې په محل کې و میندل شوه. دې فرمان له هغې تاریخي نظریې سره چې د کندهار

نوم ئې «له ګندهارا» څخه با له او بل ئې چې ارا کوزیا نو په پنځمه پېړۍ کې د افغتالیانو د لاسه له مشرقي سیمو څخه دې ځای

ته هجرت وکړ او اصلي ځای ئې « ګوند افرز» ته په کومك وکړ. «هیرزفلډ» زموږ د هیئت یو غړی په دې عقیده دی چې د افرمان د بخوانۍ «آرمیك» یوه برخه ده چې څو موده د مخه ئې په «ټکسلا» او «درانتا» کې څه بلګې میندل شوې او د کوچنیو ډبرو د فرمان په نامه سره یادې شوې وې.

د عبدالمنان امین په قلم :

# سکوته د نکسن سفر



په واشنګټن کښې رسماً اعلام شویدی چې د امریکې د متحده ایالاتو جمهور رئیس ریچارد نکسن او دده ماندینه میرمن نکسن شوروی اتحاد ته خپل رسمی سفر د جون اپه لومړۍ نیټه شروع کوی .

په دې سفر کښې د ریچارد نکسن سره څینې ستر دولتی مشران ، امریکائی مشاورین او بو شمیر خبریالان هم ملګری دی .

هغه وخت چې د لومړی ځل لپاره مسکو ته د امریکې د متحده ایالاتو د جمهور رئیس د سفر خبر خپور سو نو د پیکنګ تر سفر وروسته د دوهم تاریخی سفر و بلل سو ، چې د هغه په اساس د دواړو هیوادو خلکو او نړۍ وال لوته د اهیلی او امیدونه پیدا شول چې شوروی اتحاد ته د نکسن د سفر په نتیجه کښې به دواړه لوی قدرتونه وکولای شی چې د ویتنام کړ کیچنی ، د منځنی ختیځ لانجې او د هندوچین کشالې حل او د نورو بین المللی مهمو موضوعګانو په باب به خبری وکړی او ښه نتیجه به لاس ته راسی . خو د ویتنام د سختو او خطرناکو جګړو د شروع کېدو راهیسی جنوبی ویتنام ته د امریکې د متحده ایالاتو له خوا د (بی ۵۲) ډوله الوتکو استول او سربیره پر هغه د ویتنام په (۷) بندرونو کښې د ماینونو ایښودل د اعقیده سرچپه کړه او د هغه د منفی نتیجې هیله پیدا سوه .

کتونکو دا سې عقیده درلودل چې ښائی مسکو ته د نکسن سفر د شوروی اتحاد د حکومت له خوا بدې معنی چې مسکو د هانوی له ګټو څخه ملاتړ کوی ، فسخ شی .

خو شوروی اتحاد تر اوسه پوری مسکو ته د نکسن د سفر د فسخ کېدو امکانا تو ته اشاره نه ده کړی ی مګر د جمهور رئیس نکسن د غه اقدام ئې چې د شمالی ویتنام بندرونه یې محاصره کړی دی د بین المللی قوانینو څخه ښکاره تیری بللی دی .

د جمهور رئیس نکسن مشاور کیسنګر د یوه مطبوعاتی مرکې په ترڅ کې وویل : د امریکې د متحده ایالاتو جمهور رئیس د هر ډول احتمالی خطرونو د لیری کولو په هکله د ویتنام د بندرونو د محاصرې فیصله درک کړی وه او هیله مند دی چې شوروی اتحاد به و ویتنام کې د امریکا سخت موقف درک کړی .

د ختیځې اروپا هیوادو د جمهور رئیس نکسن په د غه اقدام چې د شمالی ویتنام بندرونه یې محاصره کړی یدی ، سخت انتقاد کړی یدی ، خو د امریکې خلکو په عمومی توګه د نکسن د دغی مهمې فیصلې په باب خپل ملاتړ څرګند کړی یدی .

د ولسی چین د جمهوریت صدر اعظم چو ئنلای د متحده ایالاتو له خوا د شمالی ویتنام د بندرونو محاصره د ویتنام د جنګ د پر مختګ خطرناکه پراختیا وبلل .

د ولسی چین صدر اعظم په خپله تبصره کښې دا هم وویل چې په شمالی ویتنام کښې به خلکو له پخوا نه زیات د تیری پر ضد مبارزی سره نژدې کړی چوئنلای بو ځل بیا د هند و چین د خلکو د مبارزو څخه د خپل هیواد ملاتړ څرګند کړ .

څینې سیاسی کتونکی عقیده لری چې د شمالی ویتنام د (۷) بندرونو محاصره د امریکې له خوا بدې مقصد شویده چې په جنوبی ویتنام کی د شمالی ویتنام د فعالیت او پر مختګ مخنیوی وکړی ی . که چیری نکسن دا کار نه وای کړی ی او په شوروی اتحاد کی په سفر بوخت وای او د شمالی ویتنام قواوی پر جنوبی ویتنام بانده غالبه سوی وای دا کار د امریکې حیثیت او قدرت ته زیاته صدمه رسول .

د ویتنام د جګړو د ختمیدو په باب ډیرلو ماتیکی مقامات عقیده لری چې په د غه لار کی لومړی ګام هغه مقارکی دی چې باید په بین المللی سویه کنټرول شی .

البته په سیګون کی د دې کار د پاره موافقه شویده چې د جګړې د میدان حالت په یوه ساعت کښې بدلیدای شی خو د شمالی ویتنام په بندرو کی د ماینونو ایښو د لو حکومتی مقامات امیدوار کړی یدی چې د ستړو عملیاتو په شروع کېدو سره د مسکو د واقع بیناته خبر امکان له منځه نشی تللای .

## داو کیناوا او هاپوګان :

د نور په ۲۵ نیټه داو کیناوا او هاپوګانی په خاصو

(پاته په ۲۸ مخ کی)

# د کندهاري هندوانو دارېتو نه (دودونه)

د کندهار د کلتور په کتاب کښې مې چې د کندهار په مجله کښې څو کاله د مخه پر له پسې خپور شو د کندهار د ښتنو قول د ودونه که د واده وه که د مړینې او یا نور دا سې تر یوې اندازې پورې او ایکل دا دي په دې کښه کښې و تیاسې ته د کندهاري هندو انو د واده او مړینې د دود په هکله یو څه معلومات وړاندې کیږي که څه لېږ تر لږه لري ښځنه غواړم.  (نجیب)

## د کوزدې او واده رسمو رواج هغوی ون (کوزده):

په هندوانو کښې د نجلۍ د ورکولو پیشنهاد عموماً

د نجلۍ د مور له خوا ښځې د هلک و مور ته کیږي که دا پیشنهاد پسله سلا او مشورې ښځې د مقابل لورې یعنې د زوم د مشرانو له خوا ښځه

و منل شو نو د ناوې د مور له طرفه ښځه یو دسمالچک له میوې ښځه د هو کیږي په توګه د چوایی (زوم)

مور ته لیږل کیږي او د اته نو خبره له پوقې ښځه و ظهور ته راووزي.

د قول کلی و کور یقین شي چې دا د خیر کار سره ورسیدې پسله

دې ښځه هر یو بیله خبر بد و ښځه که ښځه وي که نر، د زوم کره د مبارکۍ له پاره ځي کله چې

دا ولاړه یې د زوم پلار یا ورور او یا بل مشر هر یوه ته یو، یو کټوري بوره سهي سر د شیرینې په توګه ور کوي و دې ته د وی په

ژبه (ودایی) یعنې مبارکي ویل کیږي.

د ولور ناوړه د ود په دوی کښې رواج نه لري، د هغه خسر صفت په نارینو یا خوا ښې صفت په ښځو کښې کیږي چې د لور د ضرور دیاتو په بشپړولو کښې ئې سم له وسه سره همت کیږي وي.

## دوازه (کاج) نودونه:

پخوا په دوی کښې واده او ورځې رواج درلودې مګر اوس د ښارنو هغې د ری ورځې او د مسکینانو د اصرف

د کاج یې هاین (نکاح تړلو) په ملحوظ د ماز دیګر له خوا د یوی عصر یې په صورت سره په (د هرم سال) کښې فقط

دوه ساعته دوام کوي په دری ورځنی واده کښې چې د زوم او ناوې خوا دواړه مشتمن وي د هري خوا د بلل سوو کسانو د میلمستیا خرڅ د هغې خوا په کور

کښې د هغې خوا په مشرانو پورې مربوط دی یعنې د ناوې د خوا د میلمنو مصرف (ریتا) د ناوې په پلار او د زوم د خوا

د میلمنو مصرف (پوښې تا – یا پوتر یتا) د زوم په پلار پورې اړه لري. د واده په لومړي ینو دوو ورځو کښې نه د ښځو او نه د نرو چندانې جموجوش وي صرف

غرمه او ماښام په نوبت سره و خپلوانو او یا هغو همقومو ته چې خبر کړی یې وي ډوډۍ ورکول کیږي مګر په دریمه ورځ چې د وی ئې د ګهوړا

سوارۍ ورځ بولي خوراد ربو درازه او سیلوتما شه وي چې په لیدو ارزي ځینې، ځینې. چې ئې

لنډوي نو د ګهوړا سوارۍ په شپه (ډولی) یعنې د ناوې بیول د زوم و کورته هم کوي مګر بعض ئې وسبا شپې یا ورځې ته ممطلوي

د ګهوړا سوارۍ په شپه چې هر څو نه میلمانه د زوم په کور کې وي په دلاک سرو نه سم او زبری وخرئي

خرڅ ئې په زوم یا د زوم په پلار پورې اړه لري. بل د زوم پلار مجبوره دی چې د زوی او یا نورو دی خپلوانو ته په واده ته یوه یوه

جوړه نوی دریشی جوړه وي.

## د (ګهوړا سوارۍ) ورځ

دا د خوښۍ شپه او ورځ په ډېر پرم سره تمانځل کیږي سر بیره د زوم پر خپلوانو باندې د زوم قولو له

اشنایان د سیا لداری په توګه سره

چوپړ له پاره سر له سهاره ښځې داغې او د زوم د کور په تزئین یا د ماښام د مجللو ترتیباتو

په تیولو کښې له هغو سره مرسته کوي د ناوې او زوم د کور میلمانه

لمر لویدو څخه د مخه بوره کورته په ورتګ پیل کوي مګر د ناوې

کره کوم سروزنه وي او معمولي وضعیت وي. برعکس د زوم کره

داتڼ، چوب بازي ساز او یا نورو

لوبو کیدلو هنګامه داسې تو ده کېږي چې ته به خیال کوي د ښار ټولې وګړي د لته راغونډ شوي دي او یا د شالمار میله ده

داتڼ او چوب بازي د داخلیدو اجازه وهر چاته شته د اختصاص په څو کسو پورې نه لري. ماخستن

د ناوې کورته د زوم تر تګ د مخه لومړۍ د ناوې د خوا څو ښځې او دوه ناریږه (بې بر) چې عبارت له بوي تالي څخه ده چې په منځ کښې ئې

د توروتېلو څراغ لګیږي او پرشاو خوا یې کافور و سندر براته وي، وړل کیږي. (د بې بر)

وړونکې ښځې د زوم په کورته ننوزي او د سراي په دروازه کښې ولاړې وي مګر هغه نوري ښځې سره له دوو ناریږو چې د غسې

ورسره بدرګه شوې وي د ننه ورځي او یو ساعت هلته توقف کوي پسله هغې بیا د زوم له

کوره څخه د ناوې کورته د څو ښځو او څو ناریږو په ګډون سره (بې بر) وړل کیږي.

په نیمه شپه کښې چې د ډوډیه

څو د لوکې بوکې وپ خلاص او مشرانو د نجو مې حساب له مخې د ناوې کورته پر آس باندې د زوم د بیولو اجازه ورکوي او په دې وخت

کښې زوم مخصوص لباس اغوندي سیرا (عبارت له یو ډول تاج څخه دی چې ځلورو خواوته ځوړنګي او اله خوته

ځوړلګیدلي ګروپان لري) ورپرسر او توره پلاس ورکوي، اخښیانو تر څنګو نیولی وي له هغه خونې څخه ئې د او باسي چې په هغه کښې میچن تیکر

(روغني ډوډیه) پرته وي، مخ د آس پر خوا ئې کرار کرار دا رهي کیږي ښځې ئې اله خوته رواني وي او په مخصوص

آواز سره د ګپوډا سوارۍ په متعلق هندي غزلې وايي.

کله چې ئې پر آس سپور کړ د آس جلو ئې یو خپل و نیسي د رکیب دوالډې

خواوې ئې نور نیږدې خپلوان ټینګې کړي د آس مخ ته ئې د ټولو میلمنو په ګډون د چوب بازۍ اتڼ او اتش بازي

قافله مخ د ناوې پر کور رهي شي. د ناوې کورته نیږدې چې د ناوې د خوا څو کسه ئې استقبال ته د مخه لا راوتلي وي هغه رادمخه شي او زوم له آسه څخه کښته

کړي. بیا ئې اخښیان تر څنګو و نیسي او هغه اطاق ته ئې بوزي چې په هغه کښې ناوې پر تخت ناسته وي او کاج

پېها یې (نکاح تړل) کیږي. زوم چې ئې وننوځي خونې ته داخل کړ د ناوې د کور مشره رادمخه شي غواړي چې پر شایې په سوك ووهي مګر ورسره

کسان ئې مانع کیږي او نه ئې پرېږدي.

د زوم د خوا میلمانه په اتڼ، چك چکو او نارو ګ هلهلو سره د ناوې کورته

داخلیږي او د ناوې د ښځو اطاق [illegible] څه وهغو خونوته چې د مخه ئې ورته ټاکلې شوې د [illegible] کوي

او څه د اتڼ او سندرو له پاره د سراي په غولي کښې پاتې کیږي

پسله یوه ګړۍ څخه د چا یو پتنوس راسي او ګردوته سپې سردري

څلور پیالې خوږې چای ورکول کیږي تر کاج پېها یې (نکاح تړلو)

وروسته د ډوډیه یعنې ناوې بیولو

وخت راځي په خوا ئې ناوې په یوه چوپان وزمه کټوله کښې چې دوې ډولې بلله د زوم کورته بیوله مګر اوس ئې په موټر کښې

بیایي ناوې چې د اشپه د زوم په کور کښې تیره کړي په د اسپا سهار وختې د میږه په ملګرتیا

د پلار کره ځي. د دغې ورځې په ماښام د خسر له طرفه څخه یو مجلل

دعوت د زوم وخواته ورکول کیږي دې دعوت ته دوې پخپله

ژبه (جون) وایي. د ادعوت چې وسو بیا ناوې او زوم سره یو ځای کیږي داهم باید و ویل سي کله

چې ناوې ئې د ګپوډا سوارۍ په شپه د زوم کره یو تله هلته د مالګې یوه لوکڅوړه د دې مخې ته ایښودل کیږي دا به د زوم و خپلوانو

او یا ټولو هغو کسانو ته چې له ډولۍ سره راغلي دي، یو یو موټ مالګه ور کوي او هغه به بیا په

عوض کښې د مخ پیټکۍ په توګه سره یو اندازه پیسې ددې په لمن کې اچوي و دې رسم ته دوی پخپله ژبه

(پاته په ۲۵ مخ کې)

مرکي او مصاحبې        د مجلې خبریال رحیمي

# خلیفه ګل محمد د هیواد نامتو پهلوان

# دی حاضر دی چې د داخلي او خارجي پهلوانانو

## سره چې تر ده ۱۰ کیلو اضافه وزن ولري، مسابقه وکي

زموږ د لرغونو سپورتو له جملې څخه یو هم غیږه ایستل او پهلواني ده چې تراوسه پورې رواج لري. په عمومي میلو کې ځوانان د دې لرغوني سپورټ له لارې زور او قوت نه ازمويي او پدې توګه خپله مېړانه او غرور

څرګندوي. له دې امله د کندهار خلک په غیږه ایستلو کې د پوره مهارت څښتنان دي او د غیږې په میدانو کې یې داسې پهلوانان روزل شوي دي چې تا ئې ملامځکې ته

نسوای وروستلای لکه ارزمحمد غیږباز، خلیفه ګل محمد او داسې نور پهلوانان. خلیفه ګل محمد که څه هم اوس غیږه ایستل ترک وهلي او د کشتۍ سره زیات سروکار لري، خو بیا هم ویلای سو چې په کشتۍ کې د ده

د بریالیتوب لوی علت غیږه ایستل وه. د دې د پاره چې دا تکړه پهلوان ګرانو لوستونکو ته په ښه ترا معرفي سي نو د هغه سره د مرکې په نیت په تماس کې سوم.

خلیفه ګل محمد چې د خوشحاله څېرې او قوي قد و قامت څښتن دی زما غوښتنه یې په ډېره خوښۍ ومنله او په دې ډول مې د هغه سره د مرکې سر کښېښود:

کولای سم چې وپوښتم په کندهار کې پهلواني

څه وخت منځ ته راغله او د هغه مؤسس څوک دی؟

- هو ولې نه؛ خلیفه شادولا د کندهار د پهلوانۍ مؤسس بللای سو چې لس کاله پخوائي پخپل شخصي لګښت

یو کلب پرانیستی. خلیفه شادولا زما سره ډېر زیار وایستی څو زه یې د کمال مقام ته ورسولم، نو په دې حساب هغه زما یوازې استاد او لارښوونکی بلل کیږي.

دا را ته ویلای سی چې څه شي تاسې پهلوانۍ ته تشویق کړی است؟

- څه موده پخوا د هیواد د خپلواکۍ په هکله ځینې خارجي پهلوانان د لوبو دپاره کندهار ته راغلي وو،

څرنګه چې زموږ خلک په بین المللي کشتۍ نه پوهېدل او یوازې د کندهاري غیږې سره یې اشنايي درلوده، نو هېڅوک حاضر نه سول چې د هغو سره پنجې نرمې کړي.

دې پېښې په ما کې د کشتۍ روحیه خلق کړه او اراده مې وکړه په هره وسیله چې وي زه باید په دې فن کې ځان



خلیفه ګل محمد

ورسوم څو د یوې خوا د کندهار نوم وساتم او د بلې خوا د بین المللي پهلوانانو سره پنجې نرمې کړم.

زما د تشویق بل عامل غیږه ایستل وه، ما تقریباً لس کاله کندهاري غیږه ایستلې ده چې په غیږه ایستلو کې بې ساري وم، څرنګه چې د غیږې ایستلو په فنونو بلد وم

...ونو يوازې د ټاټي فنونو ته مې اکتيا لرله او هغه فنونه
مې دخليفه شاه‌دولا څخه زده کړه او په دې ډول مې خپل
مرام ترسره سو.

کله چې دخليفه گل محمد څخه مې د کورنۍ په باب پوښتنه وکړه په خندا يې وويل: «د يوې کورنۍ پر ځای د دوو څښتن يم اته اولادونه لرم او پنځه اولاده مې مړه سوي دي» په رښتيا هم تعجب آوره ده چې يو شخص

د دوو ښځو او ۱۳ اولادو څښتن وي بيا هم پرخپل فاينل ولاړ وي.



## خليفه شاه‌دولا په کندهار کې د کشتي مؤسس

- څه تاسې چې د استادۍ مقام ته ورسيدلاست د پهلوانۍ په لار کې مو شاگردان روزلي دي که نه؟

- بلې، ما يو کلب «د ښار د والي د کلب» په نامه پرانيستی د اځکه چې د اځای موږ ته د ښار والي د خوا راکړه شو. نو ما هم په خپل وار ځيني تکړه شاگردان

روزلي او ټولني ته مې وړاندې کړي دي چې د هغو څخه محب‌الله، محمد آصف، غلام رضا، محمد عيسی، عبدالرحمن، محمد نعيم، گل حسن خان، محمد نور، محمد نبي، عبدالباقي، غلام سخي، ودکی، جانان، عبدالله او علي احمد د خارجي او داخلي پهلوانانو سره د مسابقې دپاره حاضر دي او زه بخپله چې وزن هشت يم ترخپل وزن لس کيلو اضافه د داخلي او خارجي پهلوانانو

سره د مسابقې دپاره تيار او آماده يم، په شرط د دې چې د ريفرۍ زما په حق کې خيانت و نه کړي.

- ښاغلی گل محمد لطفاً دا راته ووایاست چې د هيواد په دننه يا دباندې کې د کومو پهلوانانو سره مو لوبې کړي دي او نتيجې يې څه ډول دي؟

- د کابل د نامتو پهلوان آصف «کوه کن» سره مې مسابقه کړې ده که څه هم هغه تر ما پنځه کيلو زيات دی او فول يې هم راسره وکي خو د ريفرۍ د واسطي او چشم پوشي په اساس لوبه مساوي پای ته وسوه. آصف کوه کن

پرخپل فاينل ولاړ پهلوان دی او بې له ما څوک د هغه سره مسابقه نسي کولای. همدا رنگه د کابل يو بل نامتو پهلوان جان آغا چې پنځه مياشتي يې د داخلي او خارجي

پهلوانانو ته چلينج ورکړی ؤ، ما مسابقه ورسره وکړه په نتيجه کې زه غالب او دی مغلوب سو. په دې مسابقه کې

ما هغه فني ضربه ووا هه، د دې مسابقې د ننداري دپاره زموږ محبوب باچا او د سلطنتي درنې کورنۍ نور غړي هم حاضر ؤ.

قيوم ايوب هم د هيواد د مشهورو پهلوانانو څخه دی چې زما سره د مسابقې په ترڅ کې يې د دې نمرې بايللې او په آخر کې يې د ميدانه راڅخه وايستي.

د هيواد د باندې يوه پلا پاکستان ته بلل سوی يم هلته مې د مجيد پهلوان سره چې د سيند په رستم مسمی دی مسابقه وکړه او هغه مې مغلوب کی، سره د دې چې هغه تر ما ۲۰ کيلو زيات ؤ. په دې سفر کې زما دوه شاگردان

محمد نبي او سيد حسين هم راسره ملگري وو او د پاکستان د المپيک له خوا ۳۰۰۰ کلدارې دا و بخښل سوي.

همدا رنگه دوه کاله پخوا يو بل پاکستاني نامتو

پهلوان اختر حسين د افغاني پهلوانانو سره د مسابقو په غرض کابل ته راغلی ؤ خو کابلي پهلوانانو د هغه سره سازش وکي چې او به مساوي پای ته ورسوي، مگر ما اختر حسين ته چلينج ورکړ چې مسابقه راسره وکړي هغه ځان راڅخه وکيښ

او زما د غوښتني څخه يې ډډه وکړه.



خلیفه گل محمد د خپل شاگرد محب الله سره د پر کتیس په حال کې لیدل کیږي

په کندهار کې موږ یو ار په خپل منځ کې د محمد صدیق خان والي په حضور کې مسابقه وکړه او دوه واره موږ هرات د پهلوانانو سره مسابقه کړې ده چې دواړه واره هغه مغلوب شوي دي . تردوی وروسته د کابل د اطرافي کلپ پهلوانان کندهار ته راغله او د مسابقې په نتیجه کې زموږ دوه کسه ورسره مساوي شوه، نور ټول بانديې غالب شوو . هم دا رنګه د کابل د معارف د کلپ غړي چې ټوله تکړه پهلوانان دي ، دلته راغله، موږ غوښته چې د هغو سره هم مسابقه وکړو خو هغه اعتمادي ما ته په ټیلفون کې وویل چې د هغو سره مرسته او همدردي وکړي . نو موږ هم د لوبې ځل له پاره د هغوی سره د ضرب میل حرکت ( د پهلواني یو حرکت دی چې ځوانان په احساساتو د اولي ) اجرا کړي، په دې حرکت کې هم موږ تر هغو ښه نتیجه واخیستل

سره د دې چې موږ نه خارجي استاد لیدلی دی او نه سم صحیح تمرین، نه لازم وسایل لرو او نه غذا .

دی د مربوطو مقاماتو څخه زیات ګیله من دی او وایي : زما سره نه په کندهار کې چا مرسته

کړې ده او نه په کابل کې . خصوصاً په کابل کې په عوض د دې چې زه تقدیر شم زما سره ډیري ناحقي او حق تلفي شویدي . د مثال په توګه

ما یو وار د جاپان چانس واخیستی خو د کوم چا له خوا مسموم شوم، که څه هم دوی هغه غذايي تسمم وباله ولي ډاکترانو راته وویل

چې تا ته چا زهر درکړي دي .

-ښاغلی ګل محمد تاسي تراوسه کومه مسابقه هم بایللې ده ؟

هو : ما د جبار په مقابل کې یوه مسابقه بایللې ده، خو زه هیله لرم چې د ده سره بیا مسابقه وکړم په دغه نسبت دوه واره کابل ته

پس تللی یم او دی بلي خوا ته ځان راڅخه وکاږي . نو ویلای شم

چې دا پلا به ری انشاالله زما به برخه دي . دا هم بایدو وایم چې دا دریم کال دی زه کابل ته

د مسابقې د پاره ځم او تراوسه چا د مسابقې لاس ندی راکړی سره د دې چې د هغه ځای پهلوانان هم

داخلي او خارجي استادان لري او هم نور امتیازات .

-د هیواد په پهلوانانو کې چا ته په قهرماني قایل یاست ؟

د هیواد په پهلوانانو کې پهلوان ابراهیم په درشتیا د خپل وزن قهرمان دی .

-آیا ستاسو په شاګردانو کې داسي څوک شته چې ستاسو ځای ونیسي ؟

-بلې ، زما د شاګردانو څخه محیب الله یو تکړه پهلوان بلل کیږي، دی تر خپل وزن خارج دی او که چیري د غه کسب ته ادامه ورکړي، ښایي په بین المللي قهرمان وګرځي .

(پاته په ۱۰۰ مخ کې)



پدې عکس کې خلیفه ګل محمد د خپلو شاګردانو سره ولاړ دی

د عبدالصمد (نصرخواه) په قلم

# د کندهار پخوانی تجارت

کندهار که څه هم یو زراعتي سیمه
ه او د ښېو ښو ښو څخه ددې ځای
لک په کرهنه او مالداري اخته

ي خو څرنګه چې دا ښار د هیواد
نورو ښارونو په نسبت د تجارت له
ملهڅه مرکزیت لري نو ځکه له
 پرو پخوانیو کلو څخه دلته

را کړې ورکړې او سوداګرې
معاملات صورت مومي او یو ډېر له
کړې په دغه شغل لګیادي .

زموږ د تجارت او سني ښه نسبت
 تېرو کلونو ته زیات توپیر لري
او اوسني تجارت په هیڅ وجه له
پخواني تجارت سره نسي مقایسه

کېدلای . په اوسني وخت کې
تجارت او تجارتي معاملې ډېرې
اسانه او په زړه پورې دي او هر

ډول شرایطئي برابر دي خو په
تېرو کلونو کښې یعنې هغه وخت
چې په کندهار کې لاموټرنه وو
پیدا شوي د تجارت کار و بار سخت وو

و هرچا دغه کارته اقدام نشوای
کولای . له دې امله زه غواړم چې
دلته د کندهار په پخواني تجارتي
معاملو باندې څه رڼا واچوم .

دا یو څرګند حقیقت دی چې هیڅ
هیواد خپل ټول دا ړه تیاوې شیان په
ځان کې نشي برابرولای او دی ته

مجبوره کېږي چې ځینې ضروري
شیان د بل هیواد څخه راوړي او په
مقابل کې هغه شیان چه ددوی تراړه تیا

زیات وي و هغه هیواد ته یوسي . لکه چې
د مخه اشاره وشوه پخوانی کندهار
د زراعت او مالدارۍ له حیثه ډېر شتمن وو
او هر کال ډېر شیان لکه تازه میوې ،

وچې ، پوستونه ، قروت ، زیره او نور چې
ددې ځای د وګړو د ضرورت څخه اضافه
وه د تجارت په توګه نورو ګاونډیو

هیوادو ته وړل کېدل او په عوض کې به
د هیوادو الود پاره ضروري شیان لکه
ټوکران ، لنګۍ ، چای ، بوره ، موچڼۍ ،
ګلابتون او نور راوړل کېدل .

په دغو وختونو کې د کندهار تجارت
ډېر محدود وو ، او په عمومي ډول زموږ
تجارتي معاملې په داخل کې وې او په

خارج کې هم د هند ، روس او ایران سره مو
راکړې ورکړې درلودې . په دې توګه
یو سوداګر مجبور وو چې د یو ې پلاد تګ
او راتګ لپاره میاشتې او کلونه ووهي

ځکه په هغه وخت کې سم سړ کان نه وو .
موټران او نور د اسې وسایل چې دغه کار
دې په اسانۍ سرته ورسوي په لاس کې نه

وه نو ځکه سوداګر مجبور وو چې د ځانو
او مالونو د وړلو او راوړلو لپاره
د یا بو ګانو ، اوښانو او خرو څخه کار
واخلي . څرنګه چې واټونه اوږده وه

شپې او ورځې ئې ډېرې په بر کې نیولې
نو دا کار له خطره خالي نه وو . په دې اساس
سوداګر به مجبوره کېدل چې به

ډله ایزه توګه تګ او راتګ وکړي .
دغو سوداګرو به لومړۍ د شاو خوا څخه
د مالونو په ټولولو پیل وکړ کله چې به ئې

ځینې او مهمواد لکه وچې ، پوستکي
او نور شیان سره یو ځای کړل نو
هغه به ئې په ډېره ساده توګه وتړل .

د ګمرک د اجازې وروسته به ئې هغه
وکرایه کښانو ته وسپارل وروسته
به د سفر ورځې او وخت ټاکل شو
او ترټاکلې ورځې پورې به سفر

کوونکو د ځانو او خپلو بود ه وو لپاره
ټوله خوراکي او نور د ضرورت
وړ شیان برابر کړل او درې کېدو

په وخت کې به د دوی ټو دي خپلوان
او دوستان هم حاضر وو . ترمخې ښې
او خدای په اماني وروسته به رهي
شول او په ورو ورو به ئې د سفر مزلونه

وهل . د یوې ورځې سفر وروسته
به یوه پړاو ته ورسیدل نو هلته به ئې
د ځانو او خپلو بوده وو د هوساېې

لپاره شپه تېره ول څو به سبا کښې
بیا د سفر کولو توان و مومي . کله
چې به شپه پای ته ورسیده نو په دغه
وخت کې به دوی بیا د خپلو سامانونو

په بارولو پیل وکړ او ددې لپاره
چې د ورځې ګرمي ئې ډېر په عذاب
نه کړي او له ډېر و ستونزو سره

مخامخ نشي نو سهار د سپیدو پر وخت
به ئې خپل سفر ته ادامه ورکوله .
حتی به ځینو ورځو کښې که به
ګرمي ډېره زیاته وه نو د شپې به ئې

حرکت کاوه او د سهار خواته به ئې
ځانو نه و یوه رباط ته ورسول او د
ورځې له خوا به ئې هلته ځانونه ...

او خپل بوده هوسا کوله. څرنګه چې په هغه وخت کې د سفر کوونکو په لویو لارو کې دکانونه نه وه او نه په کوم ځای کې شیان پخېدل نو دغو سوداګرو به خپل خوراکي شیان پخپله پخول او ځانونه به یې تیارول او په همدې ډول هغوی د سفر دغه کړاو او نه زغمل او تر ډېرو شپو او ورځو تېرولو وروسته به د مطلب ځای ته ورسېدل. تر رسېدو وروسته

هم هغوی مجبور ده وو چې د څو ورځو لپاره نور هم استراحت وکړي. ځکه هغه ربړونه او زحمتونه چې دوی

به په خپل سفر کې لیدلي او زغملي وو بیله څو ورځو هوساینې څخه د هغو تلافي ناممکنه وه. تر استراحت وروسته به یې ورو ورو د خپلو مالونو په پلورلو پیل کاوه او تر څه موده وروسته به یې خلاص کړل. کوم شیان چې بیا هلته مېندل کېدل او په هغه کښې به یې خپلې ګټې او اسرې لیدلې نو هغه مالونه به یې وپېرودل تر سمولو او تړلو وروسته به یې بیا ودغه ډول سخت سفر ته ځانونه چمتو کړل

او په ډله ییزه توګه به د خپلو کورونو پر لوري راهي شول تر څو چې خپل ښار ته به راورسېدل.

په دغه وخت کې بیا د دوی خپلوان او دوستان په ډله ډله ومخې ته ورتلل او هغوته به یې د دغه اوږده سفر چې شپږ اوه میاشتې حتی یو کال به یې په بر کې نیولی ؤ

ښه راغلې او ستړي مه شي ویله او یو د بل په لیدو سره به تر اندازې زیات خوشحالېدل.

د کندهار د سوداګرو وضعه تر ډېرو کلونو پورې په همدې شان وه حتی د مرحوم اعلیحضرت امان الله خان تر لومړنیو وختو پورې چې شخصي باروړونکي موټران لا نه وه د تجارت کیفیت همداسې ؤ خو د نوموړي امیر په وروستیو کلونو کې ځینې شخصي باروړونکي موټران پیدا شول او د هغه په اساس د تجارت بڼه هم واوښتل نو په هره اندازه چې دا ډول وسایل ډېرېدل اوسپکان سېدل په هم هغه اندازه د پخواني تجارت زحمتونه کمېدل تر څو چې د پخواني تجارت شکل او بڼه په اوسني تجارت بدله شوه.

(پای)

# د نورو افکار

خودخواهي او ځان غوښتنه په مطلق ډول له ژوند سره موافقت نه کوي.

یوازې ځان غوښتل په حقیقت کې ځان محدود کول او له ځانه څخه کمول دي که جود او فیض نه وي ژوند نشته.

په حقیقت کښې بشپړه او کامله خودخو خواهي به پوره غیر خواهي کې پټه ده او اخلاق هیڅکله انفرادي کېدلی نشي.

«ژان ماري ګویو»

خپل ماغزه دروغو، امیدوارو او بختورو اندېښنو څخه ډک کړئ، ځکه چې د ژوند مفهوم د فکرونو او د تفکر د طرز څخه عبارت دی. (امرسون)

(د ۸۵ مخ پاته)

## خلیفه ګل محمد ...

خلیفه ګل محمد عقیده لري

چې هر څوک خصوصاً یو پهلوان باید د عالي اخلاقو خښتن، په عقیده او ایمان باندې ټینګ وي د بد اخلاقۍ او د دخانیاتو څخه ځان

وژغوري او تر ځان کمزوره باندې رحم او مهرباني ولري. ښاغلي ګل محمد په کندهار کې د

پهلوانۍ د انکشاف په هکله داسې څرګندونه کړه:

تر هر څه د مخه د ولایت د مقام او د پوهنې د لوی مدیریت توجه

لازمه ده چې ځای، غذا او لوازم دا ته برابر کړي، په تېره بیا معارف باید د ښوونځیو او لیسو څخه

متعلمین موږ ته معرفي او یو ټیم د معارف په نامه جوړ کړي او وقتاً فوقتاً موږ د مسابقو د پاره کابل ته واستوي. همدا رنګه د المپیک

ریاست باید زموږ سره مرسته وکړي یعنې که خارجي پهلوانان کابل ته راسي باید موږ د مسابقو د پاره ورو غواړي یا د ژمي په موسم کې چې د کابل هوا سړه وي باید خپل پهلوانان د خارجي استادانو سره کندهار ته راولېږي پر ګټه یې څو هم دوی او هم موږ حاصل کړو. علاوه پر دغه په هر شي او هر عمل کې د قدرت او طاقت د زیاتېدو لوی عامل تشویق دی، نو د مربوطو مقاماتو څخه هیله لرو چې په دې لار کې موږ زیات تشویق کړي او کله کله زموږ له حاله پوښتنه او کتلو بې نه وکړي. (پای)

# د کندهار ځوان رسام ښاغلی تپاند وپیژنئ

## دی په مهندسی کې هم لاس لري او هیله لري چې په مجسمه جوړولو کې مهارت پیداکړي

غواړم دده مرکې په ترځ کې د کندهار د ارغونی ولایت یو تکړه ، ځوان او هنرمند رسام د کندهار د مجلې محترمو لوستونکو ته وروپیژنم .

دا ځوان هنرمند ښاغلی عبدالهادی (تپاند) صوفی زاده دی چې اوس د خپل عمر ۲۲ پسرلی خزانوی .

ده د کندهار په ښار کې د یوې صوفی مشربه کورنۍ په غېږ کې سترګې رونې کړې او په ۱۳۵۰ کال کښی د کندهار د احمدشاه بابا لیسې د ۱۲ ټولګی څخه بریالی فارغ شوی دی .

څرنګه چې د نوموړي هنرمند سره د مرکې په سبب په تماس کې شوم نو می د مرکې لومړی سوال داړنګه مطرح کړ :

ښاغلی تپاند دا حقیقت څرګند دی چې تاسی په رسامی کې لوی لاس او پوره مهارت لری، نو دا راته ویلای شی چې کله مو د رسامی په هنر لاس پوری کړی او څه شی سبب شو چې د رسامی هنر مو ځان لپاره غوره کړ او په دغه باب مو ښوونکی څوک دی؟

—بلی ، د رسامی د هنر سره می د ښوونځی د لومړی ټولګی راهیسې مینه او علاقه درلوده خو د شپږمی ټولګی راپدېخوا می دده هنر په مشق او تمرین لاس پوری کړی دی .

داچې پوښتنه کوی ولی می د رسامی هنر غوره کړ نو که رښتیا ووایم زه هم نه پوهیږم چې ولی می د رسامی هنر ځانته غوره کړ مګر دومره ویلای شم چې هروخت به ډول ډول عکسونو او لاسی کارونو زما توجه ځانته



عبدالهادی «تپاند»

جلبوله خو ما به هم د امکان په صورت کښی د هغو نقل رسماوه څو بالاخره می د پلار تشویق دده سبب شو چې زه باید حتماً دا هنر وبالم خو په هغه هنر کښی تراوسه لاهم استاد نه لرم .

—آیا ویلای سی چې د ښوونځی په دوران کې دې د کمو مضامینو سره علاقه او دلچسپی درلوده؟

—که په جواب کې ووایم چې نه پوهیږم ښایي تعجب به وکړی مګر دا زما له پاره یو حقیقت دی ځکه زه فکر کوم چې په مکتب کښی تدریسی سیستم او د درسونو زیاتوالی سړی ته دا مجال نه ورکوی چې د خپل ذوق پالنه وکړی نو څرنګه چې په مکتب کې انتخاب یو تصادف دی نو ما هم ترڅه وخته د ادبیاتو سره علاقه درلوده وروسته می طبعه واوښته او د ساینس لاره می غوره کړه خو سره له دې بیا هم په هنر او ادبیاتو کښی خپل استعداد وینم .

کله چې می د نوموړی نظر په د مکتب د دوران د خوږې او ترخې خاطرې په باب وپوښته داسې یې څرګنده کړه :

—څرنګه چې د مکتب د دورې تر درو برخو اضافه می د ټولګی لومړۍ درجه درلوده او د خپلو ملګرو هر ډول رقابت می کړی دی چې دا زما لپاره خوږه خاطره ده .

کله چې تپاند خپلې خبرې خلاصې کړې نو می بیا ځنې وپوښتل که د هنر په باب هم معلومات راکړې چې هنر څه شی دی او د رسامی هنر لومړی ځل چیری منځ ته راغلی دی، ښه به وی؟ په جواب کې یې داسې وویل :

(۱۱مخ)



## ښاغلی تپاند د رسامۍ په حال کې لیدل کیږي

— دا پوښتنه مو ډیره په زړه پورې ده نقاشي هم د نورو بدیعو په څیر د انسانانو تر منځ د ډیرو لرغونو زمانو راهیسې یعنې هغه وخت چې انسانانو ابتدائي ژوند درلود

په دوی کې مروجه وه. د خط د ایجاد او حتی پنځه زره کاله دمخه او که وایم د دې څخه لا هم مخکې انسانان د نقاشۍ سره بلد وو. هغوی به طبیعي پیښې، خوښۍ، دردونه او غمونه د مغارو پر دیوالونو رسمول او د هغوی پیژندنه د یوه نسل څخه

و بل ته پاته کیده. د خط د ایجاد نه ډیر مخکښې انسانانو یو او بل ته احوالونه د نقاشۍ په مختلفو اشکالو سره لیږل چې هغوی به د مقابل طرف د احوال او یا غوښتنو څخه خبریدل.

نو دا ویلای شم چې نقاشي د انسانانو په ژوندانه کې ډیر قدامت لري او هم دغه هنر په کوم خاص ملت پورې نښتی نه دی خو فقط دا ویلای شم چې چین او خصوصاً جاپان دا هنر د ډیرو پخوا

زمانو راهیسې ساتلی او روزلی یې دی او همدغه رنګه په اروپا کې ایتالیا د دغه ظریفه هنر و تو مرکز دی.

زما په عقیده هنر د یوې ټولنې د هنداري حیثیت لري چې په هغې کښې د ټولنې د غم و عیني حالت، غوښتنې او دودونه منعکس کیږي او هم هنر د ټولنې د روح روزونکی دی او د هر ملت روح د هنر په لار کښې پلټلای شو.

ویلای شم چې بیله هنره د یوې ټولنې ژوند نیمګړی دی او هم دغه ټولنه به د همیش لپاره خاموشه پاتې وي.

همدغه رنګه عبدالهادي تپاند د دې پوښتنې په جواب کې چې په رسامۍ کې د کم سبک پیروي کوي وویل:

— څرنګه چې زه تراوسه هنرمند نه یم یعني یوازې هنر پلټونکی او هنر خوښوونکی ځانته ویلای شم نو ځکه رسم می هم ښایي کم ادبي او هنري مکتب ته داخل نه وي خو خوښ لرم چې په دې برخه کښې د ریالیزم د مکتب پیروي وکړم.

ځکه په دې مکتب کې هر څه په حقیقي توګه د طبیعت په واقعي څیره کې پلټل کیږي او پیروان ئې ځان د نړۍ او محیط د واقعاتو سره برابروي.

نوموړي د یوې بلې پوښتنې په جواب کې وویل:

— لکه څرنګه چې دمخه مې وویل: زما رسم

تراوسه ابتدائي او د کوڅو په پیچ و تاب کې ورک دي نو کومې داسې تابلوګانې مې د ننداری د پاره نه دي ایښودل شوي فقط څو کاله دمخه مې دوې دانې رسمونه د کابل د خزان سالون ته ولیږل.

ممکن د لیدونکو د توجه وړ نه وي ګرځیدلي او یو څو دانې رسمونه مې هم د کندهار په موزیم کې پراته دي چې هغه هم د ځینو مشاهیرو عکسونه دي

خو له دې امله چې زه په ښه ترسیمولو کښې په لاس لرم نو یو زیات شمیر عکسونه مې د خپلو ملګرو او دوستانو رسم کړیدي او پرته له هغه مې



د تپاند د تابلوګانو یوه نمونه

د کندهار د اطلاعاتو او کلتور د لوی مدیریت په ډېره اندازه مطبوعاتي کلیشې ور رسم کېږي.

ښاغلي تپاند زیاته کړه:

په مهندسي او نقشه کښلو کې پوره لاس لرم چې بدې برخه کښې مې د څه وخت د پاره د ښوونځي په جریان کې کار کړی دی امکان لري د اڅانګه د یوه اصل په صورت ورونم او هیله لرم چې په مجسمه جوړولو کې هم کار وکړم.

ښاغلي تپاند د هېواد په دننه او د باندې کې د هنرمندانو د آثارو د خوښېدو په باب داسې وویل:

که څه هم د دوی تر منځ انتخاب یو مشکل کار دی خو د هېواد په دننه کې د لوی استاد ښاغلي بریښنا، استاد غوث الدین او سید مقدس «نګاه» آثار او په دباندنۍ نړۍ کې مې د پابلو پیکاسو او کوکوشکا آثار ډېر زیات د توجه وړ دي.

همدغه رنګه ئې د یوې بلې پوښتنې په جواب کې وویل:

زما ډېره اندازه رسمونه د دوستانو، ملګرو او مشاهیرو عکسونه تشکیلوي نور رسمونه مې د خیاناکه پېغلې، د بله بڼ د طبیعت په غېږ کې او پښتني دود په نامه یادېږي. کله کله مې ځینې کارېکاتورونه هم رسم کړي دي چې د ترجمان او زیري په جریدو کې چاپ شوي دي.

مګر دا چې پوښتنه کوې کوم رسم مې خوښ دی، بدې باب باید ووایم چې معمولاً زه عادت لرم چې کله کار کوم په ډېر شوق باندې هر څه چې وي شروع او رسم کوم. خو هر رسم مې تر یو څه وخت وروسته نه وي خوښ ځکه ډېرې نیمګړتیاوې پکښې وینم.

د تپاند څخه مې دا هم وپوښتل چې آیا تر اوسه پورې دې د رسامۍ د هنر په برخه کې کمه جایزه وړې ده که نه او هم ووایه چې شاګردان دې د رسامۍ په هنر کې روزلي دي؟

په جواب کې ئې بیله ځنډه راته وویل:

زما لپاره د خپلو ملګرو تشویق لو جایزه ده خو تر اوسه پورې لا زه د خپل ځان شاګرد یم.

د پورته سوال د جواب تر تمامېدو وروسته مې ځنې وپوښتل چې د رسامۍ د هنر د زیات انکشاف د پاره کم شیان ضروري دي؟

ده وویل: زه بدې فکر یم چې که د ښوونځي په مضامینو کې انشعاب د انشي رسم په همدغسې د ښوونځي د محیط ځوانانو په منځ کښې بې اهمیته او په یوه فرعي شکل باته وي، البته واړه زده کړیان د دې هنر د روزلو په لاره کښې پوره رول لوبولای شي. د دې هنر په مقابل کې د خلکو د تعصب لیري کول د هنرمندانو تشویق کېدل، د هر ډول نقاشي موادو موجودیت، متعدد فني کورسونو پرانستل او نقاشۍ ته د یوه ظریفه هنر په سترګه کتل د رسامۍ د هنر د پرمختګ عمده عوامل دي.

نوموړي خپلې خبرې نورې هم دا رنګه پرله پسې کړې:

لکه څنګه چې تاسو ته معلومه ده دلته هر څه د یوه تصادف له مخې دي. ډېر وخت داسې پېښېږي چې د ژوند ټول شرایط د انسان تابع وي او کله بیا انسان د دې شرایطو تر تأثیر لاندې راځي یعنې دا چې که فرضاً یو نفر ښه او تکړه نقاش وي او حتی تر عالي تحصیلاتو پورې دا شوق وروزي مګر په آخره کښې وینې چې د هغه ژوند هیڅ نه تأمینوي نو د مجبوریت له پلوه یوې بلې خوا ته مخه کوي نو زه د خپلې آینده په هکله هیڅ نشم ویلای

یوازې آرزو لرم چې وتولنې ته د یوه صادق نقاش په حیث کار وکړم او د ټولنې محیط په خپله طبیعي څېره د آرټ په تابلو کې د هغه د معرفي په غرض وړاندې کړم.

څو له دې لارې د خپل هېواد ته خدمت وکړای شم.

## د خزندو په ذریعه غلاوې

د سنګاپور ستریټس ټایمز اخبار لیکلي دي چې د اندونیزیا یو لیسوبو متقلب سړی بندي کړی.

ځکه ده خزندو ته غلا ورزده کړې وه.

د غو خزندو به د هغې موسسې د پیسو له صندوق څخه پیسې راغلا کولې چې نوموړی متقلب کار پکښې کاوه.

## ضعیفه نکته

دوو دوستانو یو د بل خبرې کولې اول دوهم ته وویل:

ـ زما ښځه هر وخت چې د کم شي غوښتنه زما څخه ولري، ډېر خوندور خواږه راته پخوي.

ـ مثلاً څنګه خواږه درته پخوي؟

ـ د ماغزو خواږه!

ـ نو معلومه شوه چې دې ته ستا د ضعف نکته ښه معلومه ده.

لیکوونکې پوهنمله کریمه «اڅکزۍ»

# سبايي ټولنه د نني مېندو د غېږې محصول بلل کېږي

د نن ورځې د سبا پلار دي او د نن لور د سبا مور ده ځکه نو کوچنيان د بشري ټولنې د خورا ارزښتناکې پانګې څخه دي چې د بشري تاريخ په اوږدو کې د نړۍ

د فلاسفه وو علماوو، پيشوايانو او مشرانو د خوا د دوی د روزنې او ښوونې په برخه کې توصيې شوې دي او د علم، پوهې او فرهنګ د پرمختګ د بشپړتيا په لار کې يې د عمل جامه اغوستې ده. نن ورځ د يوه روغ او سالم

کوچني روزنه د عصري فرهنګ سره سم د هر پرمخ تللي هيواد د عاليترينو او لومړنيو مسايلو څخه شمېرل

کېږي. ځکه د کوچني ومقام ته پاملرنه او احترام د سبا و بشري ټولنې ته احترام دی او د سبا د مېندو او پلرو درناوی ده چې د سبا واګې بلاس کې نيسي او د دې بشري ټولنې د سير ته ادامه ورکوي.

د دې ټولو خبرو د عملي کېدو مسؤليت د نني مور پر غاړه دی، ګواکې مور ده چې سرلوړې نړۍ جوړوي.

وايي مور په ژوند کې دوې نغمې زده کړې دي. يو د خوښۍ او اميد نغمه چې کوچني ته يې په للولو کې وايي او بله د غم نغمه ده چې د خپل اولاد د مړينې په وخت کې يې وايي.

مور د تباهۍ او نابودۍ سره او د همدې ناوړه نغمې او سرود سره مجادله کوي. مور د همدې ناوړه سرود د ليرې کولو د پاره جنګ نه غواړي، نفاق نه غواړي او د قتل و قتال څخه کرکه کوي.

مور سوله غواړي، مينه غواړي اتفاق غواړي، دوستي غواړي.

هو مور مور غېږه د ژوند سبق ورکوي، د مور غېږه



تهيه کوونکې قمره اڅکزۍ

د سبا ځوان ورکوي د مېړانې، شجاعت او وفادارۍ درس ورزده کوي.

مور بايد پوه شي چې د اولاد د ښوونې او روزنې مسؤليت په غاړه لري ځکه نو د کوچني روزنه خپل عالي هدف وګڼي.

## د روميانو پړول خواړه

### د شپږو تنو د پاره ضروري مواد:

شپږ دانې غټ او سالم روميان، ۳۰۰ ګرامه پخې د غوايي غوښې چې وروسته تر ايشولو تر ماشين ايستل شوې وي، يوه دانه هګۍ، نيمه وچه ډوډۍ چې په شيدو کې خشته شوې وي، تور مرچ، ګشنيز، پياز، هوږه، مالګه او د ضرورت په اندازه.

### د پخلي طريقه:

د روميانو سرونه د خولې په ډول په چاړه جلا کړه، د منځ مواد يې خالي کې احتياط وکړه چې پوست يې خراب او سوری نه شي. په منځ کې يې مالګه او مرچ واچوه

او د پنځلسو دقيقو د پاره يې پرېږده. بيا يې چپه کړه چې د منځ اوبه يې توی شي.

وروسته غوښې، پياز، هوږه او ګشنيز د کوفتې په ډول د هګۍ سره ګډ کړه مرچ او مالګه هم ورزياته

او روميان په ګډ کړه او خولې پرې کېږده. کړاهۍ په يوه سينۍ کې په داش کې کېږده چې حرارت يې متوسط وي. وروسته له شلو دقيقو يې

راوباسه په غوړي کې يې په تازه نعنا او ګشنيز سره زينت کړه.

# ښه‌ده چې و پوهېږې!

که چېرې چیني لوښي درز پیدا کړي نو بو دانه تر بخ بادام تینګک تینګک پوړې او موږې څو داو بو دتوئیدو مخه بې ونیسي.



که فلزي لوښي زنګ ونیسي نو سمدستي یو پنډ توکر په امونیا لوند کړي او په زنګ پورې یې وموږي. وروسته بیا د جیر بوه توټه باندې وموږي څو هغه پاک سي



مسي لوښي باید په ریګ پریمینځي او بیا د لیمو په او بو کاغذ لوند کړي او پورې وئي موږي

وروسته تر هغه یې په او بو پریمینځي.



که غواړې د سپینو زرو لوښي پاک او توري لکې څیني لیرې کړې نو لومړی هغه په صابونه پاک پریمینځي بیا ئې لس دقیقې په سرکه کې کېښېږدي وروسته تر هغه د لرګو برادہ پورې وموږي څو ښه جلا پیدا کړي.



المونیمي لوښي لومړی په توده سرکه پریمینځي، او بیا یې په او بو پریولي.



که‌ و پوهېږې چې د سکرېټ ایرې نیکلي لوښي، دستشوئي او حمام څونه ښکلي او صفا کوي، هیڅکله به بیا ایرې د باندې ونه غورځوي.



که غواړې چیني لوښي نوې راونیسي او د غذا د تودوخې په مقابل کې یې مقاومت زیات شي نو هغه لوښي په یو بل لوښي کې چې یخې او به پکښې وي واچوي او او به کرار کرار دوایشوي او څو دقیقې ئې پکښې پرېږدي.



ناپاکه او ککړ لوښي په سرکه پریمینځي.

## لومړی مېرمن چې په لبنان کې قاضي وه

د نسیس ګیبار اخوري لومړنۍ ښځه وه چې د لبنان د عالي دربار د دولتي شورا د قاضي په حیث مقرره شوې وه.

مخکې تردې یې د اوو کلو د پاره د عامه چارو د وزارت د منازعاتو په اداره کې کار کاوه.

دا مېرمن د یوه انجینر مانده یښه ده او څلور کوچنیان لري.

### پروفېسره په آسترالیا کې:

د آسترالیا په پوهنتون کې یوې ښځې پروفېسري ترلاسه کړه دری کاله پخوا

د اکتر انید کامبل ته د مو ناش په پوهنتون کې د پروفیسوري علمي رتبه ورکړه شوه دا د آسترالیا لومړنۍ مېرمن ده چې د هغه ځای په پوهنتون کې د حقوق مضمون تدریسوي او د پروفیسري مقام ورکړه شو.

# پښتني خوړلي

## خواږه

### د اړتیا وړ شیان

یو کیلو زردکي، دوه سوه ګرامه دور یجوانه، دوه سوه ګرامه غوړي، نیم کیلو بوره، دوه ګرامه زعفران، نیم ګلاس ګلاب، پسته او بادام په کافي اندازه.

### د پخلي طریقه:

زردکي وتراشي، ښه ئې پریمینځي او دلې او بو سره ئې پر اور کېښېږدي چې پخې سي.

وروسته تر پخېدو زردکي د دیګه څخه را وباسي او تر صافي ئې تېر کړي. دوریجوانه چې تیار دي ته پراته دي د حیواني غوړو سره یې ګډ کړي او پر اور یې کېښېږدي. او په کاچوغه یې سره وڅوروي تر څو او ړه طلایي رنګ پیدا کي. بوره په دوه ګیلاسه او بو کې وا یشوي، وروسته او به ئې صافي کې او پر پخې سوو زردکو یې علاوه کي. پدې وخت کې دوریجوانه هم ورسره ګډ کي او نیم ساعت د غه حلوا په لږ اور دم کړي. لنډه دا چې د غه خوندوره حلوا د (زردکو د حلوا) په نامه په یوه غوړي کې واچوي او نوش جان ئې کي.

د عبدالله «نجیب» اخیستنه

# محقق العلما ملا عبدالحق اخوند خروټی

ملا عبدالحق اخوند (خروټی) په ۱۲۱۵ هـ.ق. کې زېږېدلی دی.

ابتدائي تحصیل ئې د خپلې کورنۍ له خوا او انتهائي تحصیل ئې په معقولو او منقولو کې د قاضي القضات ملا احمد (الکوزي) څخه کړی دی.

مرحوم ملاصاحب د عمر پر شلم کال باندې قول مروج علوم بشپړ او پسله دې څخه ئې د تفسیر، حدیث، فقې، عقاید، ومعقول، ریاضي، معاني او اصولو وتدریس ته زنګون کېښې او په هر علم کې ئې ډېر تکړه شاګردان روزلي دي.

ملاعبدالحق اخوند خروټی د افغانستان او هندوستان لویو عالمانو په علمیت سره منلی او د خپل عصر علامه ئې باله.

د محقق العلما ملاعبدالحق اخوند معاصر کندهاري عالمان:

۱ – مولوي عبدالحکیم کاکړ د (ردحلمیه علی مطاعن احمدیه) مصنف چې په ۱۲۳٤ هـ.ق کې وفات سوی دی .

۲ – علامه حبیب الله کاکړ مشهور په (حبو اخندزاده) سره د (مغتنم الحصول في علم الاصول او نورو ډېرو کتابو مؤلف چې په ۱۲۶۳ هـ.ق. کې وفات سوی دی.

۳– ملا عبدالحق اخوند (علیزي) د (کشاف البخاري) او نورو ډېرو کتابو مؤلف چې په ۱۲۷۵ هـ.ق کې وفات شوی دی .

٤– ملامحمد جان صاحبزاده د (میر بازار) چې په ۱۲۷۷ هـ.ق. کې وفات سوی دی.

۵ – ملامحمد رسول اخوند (اسحق زی) چې په صوفي صاحب سره مشهور دی د (مثنوي د شرحې) لیکونکی چې په ۱۲۷۸ هـ.ق. کال کې وفات سوی دی.

٦– ملاغلام محی الدین اخوند (ترکی) چې په ملا کته اخند سره مشهور دی په ۱۲۸۱ هـ.ق. کې وفات سوی دی.

۷– ملاولي محمد اخوند د ملامحمد نور توخي زوی چې په ۱۲۸۳ هـ.ق. کې وفات سوی دی.

۸– قاضي غلام محمد «هوتك» د (ارشاد الحق) لیکونکی چې په ۱۲۸۵ هـ.ق کې وفات شوی دی.

۹– ملاغلام حضرت اخوند زاده د ملاغلام حیدر (خروټي) زوی چې په ۱۳۱۳ هـ.ق. کې وفات سوی دی.

(۱۰) صدرالعلما سعدالله اخندزاده د ملاحضرت اخندزاده خروټي زوی د «کشف المحجوبین علی تفسیر الجلالین» او نورو ډېرو کتابو لیکونکی چې په ۱۳۱۳ هـ.ق. کې وفات سوی دی.

د محقق العلما ملاعبدالحق اخند خروټي د مشهورو آثارو څخه د «یاقوت السیر» او شرح اربعین کتابونه ئې د امیر دوست محمد خان د پاچهي په زمانه کښې لیکلي دي. او نور آثار ئې هم شته چې ځینې له خلکو څخه موجود او ځینې ئې پر مخ له منځه تللي دي.

ملاعبدالحق اخوند (خروټی) د ۷۵ کالو په عمر په ۱۲۹۰ هـ.ق. کې وفات سوی او په کندهار کښې د سید میر احمد د زیارت و شمال غرب ته پخپله پلار ئې هدیره کښې د پلار و څنګ ته ښخ دی.

و ابی امیر دوست محمد خان و محقق العلما ته ډېر قدر په سترګه کتل او د ده علمي تبحر ئې ماننه، د ده معاصرو عالمانو که په کندهار کې وه یا په نورو ځایو کې په علمي مسایلو کې به ئې هر وخت له ده څخه علمي مشوري غوښتې او د ده نظر بې به یې تائیدولي .

(د ۲مخ پاته)

## د آشوکا کتیبه...

(الف) د کتیبې د یوناني برخې ترجمه:

۱– لس کاله د پریادارسین پاچا له تاج ګذارۍ څخه تیر شوي وه چې و خلکو ته ئې رحم او د دیانت اصول ور وښول.

(۲) پسله دې څخه خلکو د ی د مځکې پر سر باندې ډېر متقي او پرهیزګاره و ایدي .

(۳) پاچا د خلکو د ژوند له آزارولو څخه پرمخ اجتناب وکړ او ماهیګران او ښکاریان ئې له ښکاره څخه منع کړه.

(٤) هغو خلکو چې د ځان اداره ئې نشوای کولای د ده له خوا برطرفه شول .

(۵) هغه خلک چې څه سر کښېوه او د ځانو اداره ئې نشوای کولای پلار او د سپین ږیرو مطیع شول.

(٦) په دې دوبه سره به و کړي د یوه بختور ژوند څښتنان شي.

### د کتیبې د بلې برخې ترجمه

(۱) لس کاله د دغه زمونږ ستر پاچا «پریادارسین» د حقیقت او رشتیا ګڼلو ی مؤسس شو.

(۲) بدی په ټولو خلکو کښې پر مخ ور که شوه او دی د بدبختانو د محوه کولو سبب شو هم دغه سبب دی چې اوس د مځکې پر مخ باندې بشپړ امنیت دی.

(۳) پسله دې به زموږ سردار (ټولواك) و حیوانانو ته خواړه ور کول او لږ به ئې وژل نو ځکه ټولو خلکو د حیوانانو له وژلو څخه ډډه وکړه حتی د کبانو له ښکار څخه ئې لاهم لاس و نه اخیست.

(پاته په ۲۸ مخ کې)

پوهنوال کندهاري «رشاد»

# نعت

## د دوولسمې د نیکړغي ورځې په هکله

ته پر آسمان د رسالت ځلانده لمر یې نبي
زه شم تر تا فدا
بیا به ساقي د جنت بڼ کې د کوثر یې نبي
صلو علی، اعلا
تر تا ندري شم محمده (ص) مقرب یې د خدای
ته یې فاضل، فاضل
د مرسلانو مشر ته یې مهذب یې د خدای
ته یې کامل، کامل
سید د نوعې د انسان خیرالبشر یې نبي
دوست د مولا، مولا
خدای غوره کړې ته په ټوله کائناتو کښې یې
خیر الانام، امام
ته سر دفتره په جمله ؤ ممکناتو کښې یې
لوړ دې مقام، مقام
په دواړو کونو کښې شرف لري سرور یې نبي
لوړ تر هرچا، هرچا
نور دې فروعی دي ټول له دوجود اصل یې ته
د نور علم، عالم
عالم غیب کښې لومړی ته وې اصل الاصل یې ته
پیش تر آدم، آدم
په شهادت کښې له نبیانو مؤخر یې نبي
پر دې دنیا، دنیا
ستا په طلوع سره د خوبه د عدم سودا ویښ
ته یې مقصود مقصود
د جهل شپه د علم ورځ شوه ستا د نور دې په برښ
ته یې محمود، محمود
سینه دې پاکه ده پربولي مطهر یې نبي
ظلمت زدا، زدا
د کائناتو ښکلېتوب ستا په جمال سره دی
بې تا بې نور، بې نور
قرآن قایل ستا د اخلاقو په کمال سره دی
هم ستا په نور، په نور
ټول له روحان د ذات اشنا شوه منور یې نبي
نوم دې یس، طه

ته یې په سترګه د جهان کښې بصارت او رڼا
د حق کاشف، کاشف
تیاره د جهل شوله ورکه ستا د مخ په رڼا
ستا په تشریف، تشریف
ته وسیله د سلامت د خپل ټبر یې نبي
ګنج د معنا، معنا
ده ستا تر مخ پورې پیکه د څو د لمر سپوږمۍ
ته یې وهاج، وهاج
د مخ رڼا دې ورکه کړه د ورکې لارې تروږمۍ
د نور سراج، سراج
ماحی د کفر استاځی د پاک اکبر یې نبي
بدر الدجی، دجی
ستا په زوکړې نګ سره شوې مړې ی اتشکدې د جهان
بل له کلو، کلو
پر خوله راولوېدل له بیرې د عالم ټول بتان
ستا په راتلو، راتلو
قصر د کسری ولړزېده چې برزورود یې نبي
وچ شو دریا، دریا
له علایقو د اکوان دې پاک پربولي دې د روح
تن دې لطیف، لطیف
ته رهنما د کل مخلوق د اسلام تن ار ه روح
ته یې عفیف، عفیف
په ټول اسرارو د عرفان باندې خبر یې نبي
ته په رښتیا، رښتیا
تا له هیچا د علم کسب کړی نه ؤ هرګز
زده دې ندري، ندري
په دود د زده کړې دې یو حرف نه ؤ هرګز
ته وې امي، امي
په بشپړ علم په نړۍ باندې اظهر یې نبي
په ښه وینا، وینا
ته یې مفتاح په تا حل کیږي مشکلات هرڅه
ستا په قدرت، قدرت
سین د رحمت یې په تا خلاص دي مهمات هرڅه
ستا په عزت، عزت
څښتن د تورې او همت یې چې پر زړه ور یې نبي
کان د حیا، د حیا

پاته په ۲۹ مخ کې



تهیه کوونکی: «طالب»

پیغوا

# زیبا و رعنا

ساقي بهار شو زما او ستا ورځې دي
هم د مستۍ هم د نڅا ورځې دي
د میخانو دروازې خلاصې شولې
بیا د صهبا او د مینا ورځې دي
بلبل په غوږ کې د غوټۍ وایې دا
د مسېدو او د خندا ورځې دي
ګل د لاله سو جام دمي هرچاته
اوس د بېدیا او د صحرا ورځې دي
د وه مین زړونه سره ښېږي په غېږ شول
د ښکلېدو او د ښکلا ورځې دي
هر لور ته خاندي رنګارنګ ګلونه
هم د زیبا هم د رعنا ورځې دي
پیغلو، ځلمو ته په خندا وویل
چې د اتڼ او د ګډا ورځې دي
د مایوسۍ د خلوت ورو تېر ه
دا د ارزو او تمنا ورځې دي

---

## د نرګس لیمه

سحرګاه د نرګس لیمه لانده
څاڅکی څاڅکي پې تر سترګو څڅېده
ما ویل څه دی ښکلی ګلوولی ژاړي
ده وې ژوندي دی پوه خوله خندېده

هیرمن ژاړو

## څلور ریځه

سحر غوړېدې غوټۍ د ګلو
سوځې له شوقه زړه د بلبلو
جدائي وینم ځکه ژاړېږم
تر سرو قد د زلفو سنبلو

## د ناز ګیلې

دا ښار د مرغسن دی که د یار پر مخ خولی دی
یا باران دی د عسلو یا د نقلو سلسلې دی
د زرغون لباس نوبت شو هره نوع په ناز یږی
زبرجد قیمت بها شو د کیمیا سره جنګېږي

رنګارنګه لذتونه د هرشي په خوند ګډېږي
هري درختي پر سرا ېښي د ګلانو منجلې دي
یا ګلاب سرخي کې ډوب دی یا پورا په ذوق مدهوشه
یا ځوږي رنګا کې ډوب رتسه یا پتنې وسو له جوشه

یا د ژمي لښکر مات شو یا زاغان مې ه سو ه له خروشه
یا واصل بي عندلیب کې پر هر ښاخ بې غلبلې دی
یا مطرب پر رقص راغی یا ساقي ورکړه شراب
یا زاهد خپل خلوت پر ښود کې ی بیان د عشق له باب

یا غماز یا تنه ناکامه یا مېن سو بیا کامیاب
یا بازار د مینې سر شو یا پر هرطرف مېلې دی
یا شور رانده غزاله شوه مشک پاشي په دامانو کې
یا افغان خریداري کې د ختن په دکانو کې

یا خوشبو په نسیم ګرځي د هر بڼ په سامانو کې
یا د اسند آب حیات شو یا جاري د نورو لې دی
یا لمن د کو هساره یا پوز جل دی د هندارو
یا وادې د پسرېزادو یا تن دي د مالدارو

یا کاهي ګل د ښاښکو یا عنبر ګډ دی په خاورو
یا امیل دی د غاښولو یا د سروزر چېلې دی
یا هوا د پسرلې ده یا وږمه ده له جنته
یا د عطرو رابعه ده یا «شیدا» سو په راحته

یا می جام د مینو نوش کې یا معجون خوري د صحته
یا د یار سره خندا کړې یا د تازه نې ګیلې دی

عبدالحکیم شیدا

# د زړه کښتۍ

په اختیار چې می جام واخستی په شرنګ
څکه اوس یمه دیار د در ملنګ
چې په درس د عاشقۍ می شروع وکړه
د ا ته وې و یل چې پرېږده ناموننګ
چې د عشق په میخانه دې ګډون وکړی
نشه ګرځه مست خراب کچکول په څنګ
تیروې به لوږه تنده پر خپل ځان
د رقیب له خوا به وړې فتنه او جنګ
دلاله په خیر به وړې داغ پر ځګر
د بتې په شان به خوښ یې په سو ځنګ
په اخلاص به چلوی د زړه کښتۍ
په هردم به دې وي بیره د نهنګ
ما «صالح» و یل قبول می دی چې ته یې
په قسمت می ږدې خوار یو وړ ننګ
(صالح محمد صالح)

# د شمشاد درخته

دا بوی د ګلو باڅی که تشریف د اوی د لبر
د یار د مخ شغلې دی که راوختی بیا لمر
دا نوی پسرلی شو که معمور شوم په وصال
دا وږمه د نسیم ده که قاصد را وی خبر

بلبل ترانې وایی که آواز دی د محبوب
دا زلفی د جانان دی که سنبل کښلی دی بر
غنچه د ګل ګلاب ده که بیا وخندل معشوق
شراب دی د لبانو که زه بیښ سوم پر کوثر

نرګس دی غوړیدلی که دلبر کړې سترګې تودی
دا غم شو له ما لیری که بیلتون وکې سفر
نازک شونډان د یار دی که سور ګل دی دانار
دا درخته د شمشاد ده که دی قد د ګل بشر

شبنم پروت دی پر ګلو که د یار د مخ خولې دی
دا یار شو سبزه پوشه که سبزه شوه بحر و بر
داوخت د خزان تیر شو که وصلت د دلبر دا دی
که پرهیښ عبدالرزاق باندی د یار و شو نظر
«عبدالرزاق هویښ»



**ادبی ټوټه**

# ښکیالی کمیس

بوزانن بیا خپل ښکیالی کمیس و اغوستو. اود بڼ لور ته شانه وزانه رهی سوه.

د ګلانو بوټودې د هر کلی د باره صفونه جوړ کړه.

ټولو بڅپلو لاسو کی رنګارنګ پیالې چې د شبنم له عرقه ځځه ډکې دی، ددې په درناوی ارمغان راوړی دی خودا هم په ډېر نزاکت د هر بوټي و خواته ورغی او د هغه د

پیالې ځځه یوه دیوه ابنده کوی.

په رشتیا طبیعت څونه ښکلی دی، نری وږمه چلیږی، سری وشنی لښتی او تاندی دوړمې سره په نڅا دی.

استکام ګلونه د میو د پیالو په څېر د باغوان په سر سلامتی یو د بله و هل کیږی. د نرګس سترګی د بنفشې پر لود ی چې په واله کی لمبیږی، کړې دی بلبل د نسترن بوټي ته

لاس ترزنه ناست دی چې د صبا باد بی شاباز و نه وړاوبی.

هره خوا ترو تازه ده دا سی معلو میږی چې د

صیاد شهوانی نفس ځځه د ټولو ځانګو غوټۍ په نس د ی او د پسرلی د دا یی انتظار باسی.

کاشکی هروخت طبیعت دا سی ښکلی او مهربانه

وای ځودې نفیسو موجوداتو لره په زړه کی د خزان د تبی لړزه نه وای. د(ع-ک) لیکنه

لیکوالکی بنیامین

# د انسان شخصیت د هغه د ژبې په وسیله څرګندیږي

تهیه کوونکی احمد «راشد»



انسان ترقیافې او بشپړ دوستان خپل ځان د نطق او بیان په وسیله خلکو ته ور پیژني. یعنې ژبه د پېژندګلوۍ ډېره ښه وسیله ده چې د یو ځوان حقیقي او هر ځای شخصیت ښه والی او بدوالی له ورایه څرګندوي.

ځکه دا خو څرګنده او ښکاره خبره ده چې هر سړی په یوه ځوانیه کښې خپل ځان د ژبې په وسیله نورو خلکو ته دوست او دښمن ور پیژندلای شي. لکه چې په دغه باب په پښتو کښې یو متل هم شته چې وایي «خپله ژبه هم کلا ده هم بلا»

د دغه متل معنی او مفهوم ته که څوک ځیر شي ریښتیا هم دا یو حقیقت دی او هیڅوک نه شي کولای چې سترګې ورځنې پټې کړي.

د دې دپاره چې یو ځوان و غواړي په ټولنه کې نورو خلکو ته ځان محبوب او دوست وګرځوي نو ده ته لازمه ده چې خپلې خبرې د ادب او نزاکت په چوکاټ کې وکړي، ځکه ددې کار په سرته رسولو سره به دی وکولای شي چې په ټولنه کې هم خپل ځان نورو خلکو ته د دوست په حیث ور وپیژني او هم د خپل ځان دپاره دوستان پیدا کړي.



ښاغلی بنیامین

برعکس که څوک دا کار ونه کړي نو ښکاره او څرګنده خبره ده چې دی به په ټولنه کې د خلکو منفور وګرځي او هم به د خپل ځان دښمنان په ټولنه کې ډېر کړي.

پوهانو هم دا سې نظر ورکړی دی چې هر څوک باید په خپلو خبرو کې ادبي جنبې ته زیات اهمیت ورکړي او د خبرو په وخت کې زیات فکر وکړي څو حق او باطل په ښو الفاظو بیان او ادبي اړخ ته ژیاته پاملرنه وکړي.

د دې لازمه ده و پوهیږو چې په خبرو کې ادب څه شی او څه ته ویل کیږي؟

څرنګه چې په دغه باب ښاغلي بېلو بېلو نظر یې موجودي وي او هر څوک په دغه مسئله خپل نظر ښکاره کړی خو زما په عقیده په خبرو کې د ادبي جنبې مراعات په دې ډول دی:

لمړی دا چې هر ځوان ته لازمه ده په خبرو کې د رښتیا ویلو څخه غاړه و نه غړوي او په خبرو کې یې هیڅ دروغو نه ایدل شي.

دوهم دا چې د خبرو په وخت کې باید ډېر فکر وکړي او همیشه یې دغه ټکي ته پام وي چې د عصبانیت څخه کار وانخلي ځکه دا څرګنده او ښکاره خبره ده چې د عصبانیت په وخت کې مطلب څرګندول ډېر سخت او مشکل کار دی.

دریم دا چې د خبرو په وخت کې د انصاف څخه غاړه و نه غړوي او همیشه کوښښ وکړي چې د انصاف په چوکاټ کې خبرې وکړي.

څلورم شی چې د خبرو کولو په وخت کې زیات اهمیت لري هغه دا دی چې خبرې باید په نرمۍ او ښو الفاظو سره وکړي.

سربېره پر دې هوښیارو باندې د ځینو خلکو په خبرو کې یو بل نقص هم لیدل کیږي هغه دا دی چې یو زیات شمیر خلک بې ځایه او ناحقه په خبرو کې مداخله کوي، یعنې د موضوع څخه خبر نه وي بیله کوم فکر او سنجش څخه مداخله پکښې کوي، موضوع خرابوي او خبرې وړ باندې کوي.

نو ځوانانو ته لازمه ده چې د خبرو کولو په وخت کې

(پاته په ۲۱ مخ)

لیکوال: عطا محمد «نوري»

# د یوې ټولنې خوشبخته کول د ځوانانو وظیفه ده

د یوې ټولنې ځوانان کولای شي چې د خپلو پاکو او سپېڅلو اقداماتو او د وظیفو په اجرا کولو کې د صداقت او ریښتینولي له لارې هغه ټولنه د خوشبختۍ پړاو ته ورسوي.

د یوې ټولنې د نیکمرغۍ اساس د ځوانانو پر والي او هغه وظیفې چې دوی ته د ټولنې له خوا سپارل کیږي په ښه ډول اجرا کول دي او د وظیفو د اجرا کولو په وخت کې باید سستۍ او کاهلۍ ته لاره ورنه کړي. ځکه په دې صورت کې د ټولنې هغه هیلې او آرزو ګانې چې یوه ټولنه یې د ځوانانو څخه لري، تر سره کیږي.

په یوه ټولنه کې ځوانان د وظیفې د اجرا کولو په وخت کې د داسې شیانو سره مخامخ کیږي چې ځینې یې د ټولنې د پاره مضر او ځینې شیان یې د ټولنې د پاره ګټور وي. نو دا د یوه ځوان وظیفه ده هر کله چې یې کوم شی د خپلې ټولنې د پاره مضر و باله باید د خپل توان او طاقت په اندازه هغه د خپلې ټولنې څخه لیرې کړي او هغه شیان چې یو ځوان یې د خپلې ټولنې د نیکمرغۍ سبب بولي، نو په ده باندې لازمه ده چې د دغو شیانو د عملي کېدو د پاره په ټولنه کې لازم اقدامات وکړي. څو ټولنه د هغو څخه زیاتې ګټې لاس ته راوړي.

د غه رنګه دا هم د یوه ځوان وظیفه ده چې هغه مضر شیان چې دی یې د یوې ټولنې د پاره بد بولي او یا دا هغه شیان چې د ټولنې د غړو په اخلاقو او یا علمي سویه باندې ناوړه اغیزه کوي او ټولنه د سمې لارې څخه کږو وږو لارو ته کشوي، خپلې ټولنې ته د بېلو بېلو وسایلو په ذریعه توصیه وکړي چې ځان د دغو شیانو



عطا محمد «نوري»

څخه وساتي. څو د هغو د ناوړه اغیزو څخه په امان پاتې سي.

دلته دا هم د یادولو وړ ده چې ځوانان باید د هغو خارجي موجونو څخه چې په دې وختو کې یو شمیر ځوانان په هغو اخته شوي دي او د خارجي موجونو څخه په پټو سترګو یعنې بېله دې څخه چې د هغو د ښو او بدو تأثیراتو په باب فکر وکړي، پیروي کوي. د داسې موجونو څخه پیروي د افغاني ټولنې د یوه ځوان د پاره هیڅ ګټه نه لري. برته له دې څخه چې خپل ارزښتناک وخت په هغو تېر او یا دا چې د خپلې ټولنې کلتور، رسم او رواج ورک کړي او ځای یې خارجي موجونو ته پرېږدي.

د دغو موجونو څخه پیروي د ځوانانو پر اخلاقو او افکارو باندې ناوړه اغیزې کوي چې دا شیان په پای کې د وجداني شکست سبب ګرځي. نو دا د ځوان وظیفه بولم چې دغو شیانو ته اجازه ورنکړي څو زموږ د ټولنې د بدبختۍ سبب وګرځي. او هر ځوان ته لازمه ده چې د خپل توان سره سم په ټولنه کې خپلې ورسپارل شوې وظیفې په پاک نفسۍ او ریښتینولۍ سر ته ورسوي. څو په دې صورت مو ټولنه تل د نیکمرغۍ سره مخامخ وي. ځکه دا نیکمرغي هغه خوشحالي ده چې نوري خوشحالي د هغې سره سیالي نسي کولای.

---

د ۲۰ مخ پاته

**د انسان شخصیت ...**

لوړو نقطو ته متوجه سي او زیار و باسي چې د خبرو کولو په وخت کې څوک در څخه آزرده نسي. او هم خبرې باید په معقولو دلایلو بنا او د حقیقت په جامه ښکلي شوي وي.

تهیه کوونکی : زبرینښا بخرکی




## دوې تکړه زده کوونکې

پیغله عظمته او پیغله زرغونه د اعظم جان لوڼې دي .

عظمته په ۱۳۳۸ کال د میزان په میاشت کې پیدا شوې ده او زرغونه په ۱۳۳۹ کال د سنبلې په میاشت کې دنیې ته سترګې رونې کړې . دواړه په یوه کال یعنې په ۱۳۴۵ کې د ملالې ښوونځي ته داخل شوې دي .

دوې دواړه ډېرې زیار کښونکې او صمیمي خوندې دي، هر وخت د خپل مکتب درسونه یو ځای وائي او خپل مشکلات سره حلوي .

تر دوهمې ټولګې پورې عظمته اول نمره او زرغونه دوهم نمره وه خو په دا وروسته کې دواړه اول نمره شوې او تر اوسه پورې د ملالې د ښوونځي د شپږمې ټولګې اول نمره ګڼل کېږي .

دوی ته په ۱۳۵۰ کال کې د مکتب د ادارې له خوا تحسین نامې ورکړل شوې دي .

سره له دې چې د مکتب درس وائي د کور کارونه او مطالعه هم ورسره کوي .



پیغله عظمته او پیغله زرغونه

## د تاریخ په باب ځینې پوښتنې

که لاندینیو پوښتنو ته صحیح جوابونه ور کولای شئ ، د مجلې ادارې ته یې را واستوئ چې ستاسې په نامه یې چاپ کړو .

۱ـ د اقصی مسجد د چا له خوا جوړ شوی او چیرې دی ؟

۲ـ د عباسیانو د کورنۍ وروستۍ خلیفه څوک ؤ ؟

۳ـ د طاهریانو د سلسلې مؤسس څوک دی ؟

۴ـ د فرانسې لوی انقلاب په کومه سنه کې وشو ؟

۵ـ لومړی جهانی جنګ په څو سنه کې شروع شو او په څو سنه کې پای ته ورسید ؟

۶ـ په دوهم عمومي جنګ کې متحدین کوم هیوادونه وبلل کیده او متفقین څوک وو ؟

۷ـ د نړۍ یو مهم نظامي پکتونه کوم دی ؟

## د پنځو لویو وچو نفوس

| | |
|---|---|
| آسیا | ۱،۸۶۲،۰۰۰،۰۰۰ |
| اروپا | ۶۵۸،۰۰۰،۰۰۰ |
| جنوبي امریکا | ۱۵۷،۰۰۰،۰۰۰ |
| شمالي او مرکزي امریکا | ۲۸۱،۰۰۰،۰۰۰ |
| افریقا | ۲۹۶،۰۰۰،۰۰۰ |
| اسټرالیا | ۱۷،۵۰۰،۰۰۰ |

## د نړۍ دوه ګڼ ښارونه

په شمالي او مرکزي امریکا کې نیویارک ۱۱،۰۰۰،۰۰۰ کسه

په آسیا کې توکیو ۸،۵۰۰،۰۰۰ کسه

په اروپا کې لندن ۸،۳۵۰،۰۰۰ کسه

په جنوبي امریکا کې بوئیس آیرس ۴،۸۰۰،۰۰۰ کسه .

## نابغه کوچنیان

«ژاکي کوګان» تر څلور و کالو زیات عمر نه لري چه د هنر په ځانګه کې یې ځلانده ستوري پشان ښکاره شو او د «کبډ» د فلم په لوبو کې د همکارانو او استادانو د ستاینې وړ وګرځیدی .

دا ښایسته کوچنی د رلونکی د نسواري و یښتانو ، ښایسته سترګو او ښه اندام دی . دی د فلمي لوبغاړو په منځ کې ډېر محبوبیت لري .

## «آنئون رو بین تاین»

د شوروي اتحاد نامتو مصنف په اته کلنۍ کې یې د شهرت آوازه په نړۍ کې خپره شوه .

## قیمتي مرغلري

یادا سي خبره ولره چي ژړه ئي وه منې او یادا سي ژړه ولره چي خبرې ومنې.

(محمد حجازي)

نیکي هرشي مغلوبوي اما ځان نه مغلوبوي. (...)

مرغه که په زرین قفس کي هم وي بیا هم خوا بدی وي. (...)

آزادي په یوه ځای پوري اړه نه لري بلکه د زړه اړوند ده.

(هربرټ سپنسر)

یوازني شي چي زه ئي په ژوند کي موفق کړم زما د مور ښوونه وه.

(اډیسن)

انسان په هره شیبه کي چي عزم وکي آزاد یږي.

(ولټر)

## تاریخي ټوکه

دشپاړسم لوئي په دربار کي زیاتره وخت دوه تنه لیدل کیدل چي دجګړي وني او بې اندازي ډنګر والي په نسبت په هرځای کښې مشهور ده وه.

یوه ورځ «تالیراند» دلویي ددربار مشهوره سیاسي شخص هغه مخاطب کړ او ورته وئي ویلې:

رشتیا نه پوهیږي چي تاسي دلاور تر ینه خلک دفرانسي حقي د دنیا یاست؟

- اختیار لري، موږ د غه صفت په ځان کي نه وینو.

- ولي... ولي، دد ی دپاره چي هرڅوک ستاسي پر ځای وای جرأت ئي نه درلودی چي پردغه اوږدو پښو پر لاري ولاړ سي!



## شیر لا پیژندنه

پورته عکس په غور وګوري دا وواياست چي د غه شخص څوک دی. ددې د پاره چي څه مرسته مو کړي وي دو نه درته و بلای سو چي دا شخص دهیواد بو تکړه شاعر تیر سوی دی چي دیوان هم لري او ددیوان پر مخ دده عکس چاپ سوی دی.

نو اوس که تاسي دهغو په پیژندلو موفق سوي یاست لطفاً دهغه پوره سوانح دمجلې مدیریت ته دخپل عکس سره راواستوي څو چي ستاسي په نامه یې چاپ کړو.

### دشوروي اتحاد جمهوریتونه

په مجموعي ډول شوروي اتحاد د (۱۷) جمهوریتونو څخه جوړ سوی دی چي په لاندي ډول دي:

لتونیا، استونیا، لیتوانیا بلوروسي مرکزي بلوروسي، او کراین، شوروي اذربایجان، ارمنستان، ګرجستان، ترکمنستان قزاقستان، ازبکستان، قرقیز ستان، تاجکستان، داغستان، مغولستان، سپینه روسیه

## دحضرت محمد (ص)

### له ویناو څخه

کوم ډوډۍ چي ورڅخه ګټه وانه خیستل سي هغه خزاني ته ورته ده چي خرڅ نه په کیږي.

## د نړۍ لوی‌ډیر

### اوږده دریابونه

په افریقا کي دنیل سیند چي ۶٤۵۰ کیلو متره اوږد دی.

په جنوبي امریکا کي امازون چي ۶۲۸۵ کیلو متره اوږد دی.

په آسیا کي یانګ سکیانګ چي اوږدوالی ئي ۵۵۵۲ کیلو متره دی.

په اروپا کي ولګا ۳۶۹۵ کیلو متره اوږد دی. په شمالي او مرکزي امریکا کي مي سي سي پي چي اوږدوالی ئي ۲۳۵ کیلو متره دی.

په استرالیا کي موري دارلینګ ۳٤۹۵ کیلومتره اوږد دی.

### دپنځو لویو وچو نسبتي ویش

آسیا په هر کیلو متره مربع کي ٤۲ تنه، اروپا په هر کیلو متره مربع کي ۶۰ تنه، شمالي او مرکزي امریکا په هر کیلو متر کي مربع کي ۱۱ تنه، افریقا په هر کیلو متر مربع کي ۸،۷ تنه، استرالیا په هر کیلو مترو مربع کي ۱،۹ تنه.

دنړۍ دوګړو شمیر دوروستي احصائیې له مخې چي په ۱۹۶۱ کي واخستل شوه دنړۍ دوګړو شمیر ۳ ملیارده او نه سوه تنو ته رسیږي.

# غلام محمد شاعر



ښاغلی غلام محمد

زموږ د شاعرانو د پېژندنې په لړ کې د ا محل تاسې ته یو ځوان شاعر معرفي کوو. دا ځوان شاعر

غلام محمد د محمد انورزوی په نامه یو پلار ی، د کندهار د سدوزو د کوڅې هستېدونکی دی. ترشپږ مې ټولګې پورې یې ښوونځې تعقیب کړی او خصوصي تعلیم یې هم کړی دی. شغل او پېشه یې غریبکاري ده لکه څرنګه چه دی خپله وایي: زه هغه ورځ ډېر خوشبخته یم چې یو غریبي را ته پیدا سي او د عیال د پاره یوه ګوله برابره کړم.

د ۱۵ کالو را هیسې په شعر او شاعري اخته سوی دی. لومړی یې زیات عشقي شعرونه ویل خو اخلاقي او تصوفي شعرونه ډېر وایي او تر عشقي شعر په اخلاقي او تصوفي شعر کې ښه مهارت لري.

د ده د لومړني شعر یوه مصرع چې د ده په یاد ده هغه د لته د نمونې په ډول را نقلوو:

یاران ده هی سول کوی هرلونه ... ربه کباب کې یې رحمه زړونه
نګاه یې نه کړه زما وخوا ته ... باته قیامت ته د غه سودا سوه

ښاغلی غلام محمد وایي: «ما د ۱۰۰۰۰ غزلو په شاو خوا کې شعرونه ویلي دي چې زیاتوه یې را څخه سته او ۸۰۰ غزلي او س او س پاك نویسه لرم» دی په شعر او شاعري کې د ملا عبدالسلام بابا د شعر پیرو او شاګرد دی. دادی د ده د کلام څخه د تصوفي او غنایي شعر د وی نمونې د لته را وړو:

نعت

عرش باري زینت کې پاك الله ستا په قدم
د مخه دی را پاڅي ټول شغلې د صبحدم
سر تر پایه نور یې مخ دی ښه په تجلی دی
د مخ صفت دی کړی پاك الله په والضحی دی
ملکې شاهدان دی ستا جمال ډېر دلارا دی
د زلفو له تاریکه څه دی جوړ دی و ظلم
زینت ستا په قدم سول هفت زمین و نه افلاکه

پر هغه وخت لا ته وی چې د شي نه ؤ ادراکه
چې ستا د نور ظهور سو، ابلیس ډېر سو غمناکه
چې نزول د رحمت وسو پر شیطان باندې جوړ غم
په یا ایها المزمل باري کړلی خطابه

په طاح و یاسین را غلی ستا صفت اهل جنابه
په مقام د قاب قوسین دی په نصیب کې پاك وهابه
وروې بلې معراج ته رب په خپل فضل و کرم
پیدا یې ستا د رویه کړه دا ټوله موجودات

زیور دی په جمال سو ټول ملك و سماوات
خلاصیږي ستا د رویه زموږ ټوله مهمات
پر لوح باندې یې پیش و کې دا ستا د نوم رقم
رسول یې هاشمي یې ستا و نام ته می سلام دی

حبیب الهي یې غلام محمد دی خاص غلام دی
تر سره می د ژوندانه تل د خولې د غه کلام دی
هزار درود سلام دې پر تا وي دم په دم

باته په ۲۹ مخ کې

د مخ پاته

# د کندهاري هندوانو...

## د کاڅ پرهالي (نکاح تړلو) ترتیب

په نکاح تړلو کښې ناوی
...وم له اړخه سره د مشرانو (ملایانو
...په مخ کښې چې دوی ئې بخپله ژبه
سره مهاراج بولي کښېنوي د ناوي
د بوډنۍ پلو د زوم له لمنې سره
تړي د ناوي له اړخه سره د ناوي
مور او د زوم له اړخه سره د زوم

مور ناسته وي لومړی سانتو
(باچه) نوري پري کوي نوري
د منجوو هغه تار ته وايي چې د يوي
ی خادي پر سر او د بلې نري خادي
پر سر تړل شوي وي د کاڅ پرهابي
(نکاح تړلو) د اطاق په څلورو
کنجو کښې څلور نوي منګيان

سره له څلورو څراغانو پراته وي
مشران (ملایان) لومړی بوخط
کاږي بيا د نکاح منتر چې د سنسکرت
په ژبه دي شروع کړي د منتر ترويلو

وروستنه ناوي او چاڅه (زوم) د اور
ر چاپېر باندي څوواره راڅرخي
و دي رسم ته دوی بخپله ژبه (لاوه)
وايي.

## د مړي د سوځلو او پرچاوڼي (فاتحې) مراسم

مړی که نروی که ښځه پسله
پر بوللو او کفن کولو څخه پريوه

کټ باندي چې شاوخوا پنجري لري
او له اړخه سره ئې ګلان ايښووه
شوي وي د مشايعت کوونکو پر
اوږو شمشان (هندوسوز) ته وړل

کیږي د مړي نږدې قریب چې سر ئې خریلی
او لونګټه ئې وهلې وي د جنازې مخې ته
څو قدمه د مخه ځي او له يوه ببرغي لوټي
څخه او به دي خوا او هغه خوا ته پاشي
حتماً به يو نوی منګی چې له او بو څخه
ډک وي شمشان (هند وسوز) ته
نږدې له ځانه سره اخلي او د مړي د جسد

تر سوځلو د مخه به ئې د مځکې ولې
تر مذهبي مراسمو وروسته د مړي جسد
د اوړلو لرګو به منځ کښې چې پرچاپېر
ئې د تورو تيلو څراغونه لګيږي او د دوی
په ژبه چنه ورته وايي ايښوده کيږي
او هغه قريب ئې چې سر ئې خریلی
او د جنازې د مخه ئې او به پاشلې راځي

اور ورته کوي د اعمل دوی کريا کرم
بولي تر کريا کرم وروسته د مړي نږدې
قريب سره له څو نورو قريبانو و د هرم

سال ته ځي او هلته اشنان يعني غسل کوي
او دا نور خلک خپلو کورو ته ځي او
غسلونه کوي کريا کرم کوونکي د نورو
نږدې دوستانو په ګډون سره مکلف دي

چې دري ورځي به شمشان ته ځي او د مړي
د هډوکو د ايري کيدلو حال به نيسي تر دري
ورځو وروسته چې د مړي د هډوکو

سوځل يقيني شوه ـ د هډوکو ايرې په يوه
کڅوړه کښې او د انوري ايرې په بله
کڅوړه کښې اچوي د هډوکو کڅوړه
په مناسب وخت کښې هندوستان ته ليږل
کيږي چې د ګنګا و سيند ته ئې واچوي او
د ابله کڅوړه د ارغنداو په سيند کښې چپه
کوي.

## پرچاوڼي (فاتحه)

دري ورځې له سهاره څخه
تر مازديګره پوري د نارينه وو فاتحه
به د هرم سال او د ښځو فاتحه د مړي
په کور کښې اخيسته کيږي د نارينه وو
فاتحې ته چې هر څوک ورځي چپ
په ناست وي او مهاراج د ګيتا
مشلوکو ته به ئې غوږ نيولي وي کله
چې د اولاد يدي د فاتحې عذر به و هغه
چاته کوي چې کريا کرم ئې کړی وي
دي ښځې چې بيا د مړي کور ته ورځي
حتماً به د مړي له مانه ينې او لوڅو
نورو خپلوانو ښځو سره په زوره
په ژړا دي او د مړي وير به ورسره
کوي د ښځو فاتحه پر دوور څو نه
ختميږي د مړي په نيږدو مياشتو
د مرګ کی په مياشت کي څلور واره
او د مړي د مرګ د کال په اخر ينو
مياشتو کښې بوواري په دغه ورځ
چې مړی پکښې مړ شويدی برپا يه
کيږي.

**دامن (د مړي خيرات):**

پسله څو ورځو څخه پروهت
(د کور ملا) راځي او د مړي پر هغه
ځای باندې چې روح ئې ورکړی
دی کښېني د مړي خپلوان هغه خواړه
چې د مخه ئې تهيه کړي دي دده مخې
ته ايږدي چې وي خوري پر دغه ځای
باندې د تورو تيلو څراغونه هم
لګيدلي پراته وي د دامن ډوډۍ
ونورو ته هم د (پرساد) يعني د خيرات
په توګه ورکول کيږي يو کال چې
تير سو بيا د خيرات مراسم په دغه
ډول سره اجرا کيږي و دې عمل ته
دوی (کيا) وايي.

**ډيوا:**

هغه رسم دی چې د شپې د مړي
د مړي ينې پر ځای او يا د مړي د کور
په دروازه کښې د تورو تيلو
څراغونه ولګول شي.

زموږ مشغولیتونه او ساتیرې:	دا یو بزی په قلم:

# په کندهار کې د ګلانو شوق او روزنه

زموږ زنده دله خلک هیڅکله د غم او مصیبتونو په مقابل کې نه مغلوب کیږي او ځانونه د خپګان او ماتم سیلاو ته نه سپاري بلکه تل ترتله سرشاره وي او د ژوندي روحیې او نشاط سره ژوند پرمخ بیائي .

همدغه سبب دی چې زموږ کندهاري ورونه د رخصتي او فراغت په وخت کې ځینې مشغولیتونه او ساتیرې لري او د دغو شوقونو د لارې ځانونه

خوښ ساتي او د ځوانۍ څخه بیا تر سپین ږیرتوب پورې د دغې پیاوړې روحیې سره ژوند کوي او ځانونه ځوانان ساتي .

موږ ځینې ساتیرې لرو چې په هغو سره د فراغت په وخت ځانونه مصروفوو او د خپل شوق څخه ځ برخوند او روحي حظ اخلو .

زموږ له د غو شوقو نو او مشغولیتونو څخه یو هم په کورونو او سرایو کې د هر راز ښکلي او خوش بویه ګلانو ساتنه ده چې د بوی خوا دغه په لیدو خپل وخت په خوشۍ تیروو او د بلې خوا مو

کورونه او سرایې په هرډول ګلانو او زینتي بوټو ښایسي .

د کندهار ولایت د هوا د ښه والي له کبله عموماً د ګلانو د روزنې او ودې د پاره یوه مساعده سیمه ده نو ځکه زموږ شوقیان او زنده دله خلک د ګلانو د روزلو او ساتلو سره زیاته علاقه لري .

که څه هم زموږ زیاتره خلک د ګلانو د لیدلو څخه خوند اخلي خو هر څوک د ګلانو په روزنه نه پوهیږي بلکه د دغه کار د پاره تکړه باغوانان

شته کې او دغه په مرسته خپلې ګلخانې په ښکلو او خوش بویه ګلانو سره تازه او ښکلې ساتي .

د کندهار په ولایت کې که څه هم اوس هر څوک چې و... لري او په تیره بیا د نوی ښار او سید ونکي چه د ګلانو د روز... او ساتلو له پاره ئې زمینه مساعده ده په هر ډول ښکلو او خوشرو... ګلانو خپلې کوټې او اپارتمانونه ښایسته کوي خو په عمو...

باغونو او پارکونو کې هم د ګلانو موج کردان او ګلدا... د ګلونو ځ کی دی .

په دی سمسوره ولایت کې شپیته کاله د خلکو د سیل

ساتیرې د پاره منزل باغ، زعفران باغ او د ارګک د مخ عمومي بـ... جوړ او په ښکلو ګلونو آراسته شول او هغه د مرحوم سر د... محمد عثمان خان د کندهار د هغه وخت د نایب الحکومه له خوا... په دغه ولایت کې ئې عمراني نهضت منځ ته راووست ودان شو ل...

منزلباغ اوس هم هغسې جم وجوش لري، یو هوټل، یو روغتو... د او سیدلو کورونه او پارکونه هم پکښې شته.



د ارګک د مخ عمومي باغ چې اوس د منځه تللی دی

په دغه ولایت کې د خلکو د عمومي ساتیرې او تفریح د پار... د مرحوم عطا جان له خوا پښتون باغ په ګلانو ښکلی شو.

زموږ د یوه بل نایب الحکومه ښاغلي سردار محمد داؤد له خو... د سرده ګلخانه او لوی باغ منځ ته راغی چه ځ برښه ګلانې در لود... او اوس ئې هم خپل طراوت ساتلی او ښه ګلان پکښې شته .

د کندهار یو بل د تفریح ځای باغ پل او پل ته نږدې د کرنې فارم دی او هلته هم د خلکو د خوښۍ او ساتیرۍ د پاره هر راز ښکلي ګلان شته.

موږ اوس غواړو چې د کندهار په نوي ښار کې د اوسنۍ عمومي سیل ځای او باغ په باب چې ډېر ښکلي ګلان لري او د دې ښار یو ډېر شوقي او د ذوق خاوند په خپلو پیسو جوړ کړی، او یو شمېر خلک هره ورځ هورې ځي او سیل ئې کوي تاسو ته معلومات وړاندې کړو: دا باغ د سید عبدالرحمن شاه رؤفي دی او د ګلباغ په نامه یادېږي.

ګل باغ په څلور نیم جریبه ځمکه کې ودان شوی او د خلکو د تفریح او سیل د پاره هر ډول داخلي او خارجي ښکلي ګلان لري.



ښاغلی سید عبدالرحمن شاه رؤفي او زوی ئې په خپل ګلباغ کې لیدل کېږي.

ګلباغ چې زموږ یو شمېر ښاریان هر ماز دیګر هورې ورځي او خپله دمه پکښې غلطوي څه د پاسه پنځوس ډوله ګلان لري او ښاغلي سید عبدالرحمن شاه د پنځه دېرشو کلونو راهیسې دغه لوی ګلخانه د خلکو د سیل او تفریح د پاره جوړه کړې ده.

د ګلباغ ګلونه او زینتي بوټي د څینو خارجي هیوادونو لکه اتحادي المان، جاپان، چین، ایران، پاکستان، هند او لبنان څخه راوړل شوي او پنځه زره او پنځه سوه ګلدانۍ پکښې شته او د کال په هر موسم کې دغه باغ د راز راز ګلان لري.

د دغو ګلانو له جملې څخه یوولس ډوله شبۍ، ۹ ډوله فلاکس، پنځه دېرش ډوله جلیبند، شپږ ډوله پتونی او دوه ډوله سنبل لري او نور ګلان ئې آدم چهره، پروانه، ګله ډول، مورسل، ګوشواره، رات کی رانی، ساو یا، نرګس، کارنیشن، ګلاب، همار الیس، بکم بیله، سوسن، مملیس، انترنزیا، پربهلا، انتري او څیني نور دي.

د ښاغلي سید عبدالرحمن شاه رؤفي دغه ښه ذوق او زحمتکښي چې په خپله او یا په خپلو زامنو دغه ګلان روزي او خلک ئې پرې اښې دي چې سیل ئې و کړي، د قدر وړ ده او حتی خارجي سیلانیان ئې هم سیل او ننداره ته ورځي.

په دې باغ کې علاوه پر ګلانو ډول ډول مرغان او حیوانات هم شته چې عبارت دي د رقم رقم هیلیو، چرګانو، کمولان، کوتان، کوتري بزو، ګیاني د غره حیوانان او داسې نورو څخه.

د دوهم مخ پاته

# سیاسي پیښې ...

## داوکیناوا ټاپوګان

د ثور په ۲۵ نیټه داوکیناوا ټاپوګان په خاصو مراسمو او رسمي ډول جاپان ته وسپارل شول.

په دغو مراسمو کې د جاپان امپراطور هیروهیټو او د امریکا د متحده ایالاتو د جمهور رئیس مرستیال سپیرو اګنیو ګډون درلود.

داوکیناوا ټاپوګان په ۱۹٤۵ کال کې د دوهم عمومي جنګ په ترځ کې د امریکا له خوا ونیول شوه او د ستراتیژیکي موقعیت له حیثه وساتل شوه.

په ۱۹۵۰ کال کښې چې د کوریا جګړې شروع شوې له سوق الجیشي لحاظه ئې د جاپان په دریځ او داوکیناوا په موقعیت ژیاته اغیزه وکړه.

شوروي اتحاد او نورو سوسیالستي هیوادو چې د جاپان سره ښه مناسبات نه درلودل، په ۱۹۵۹ کال په سانفرانسسکو کښې د جاپان سره د سولې تړون لاسلیک کې. ددې تړون په اساس داوکیناوا کنټرول او چارې په امریکائیانو پورې وتړل شوې.

دې کاله وروسته دروپوکو په نامه پوشمیر ټاپوګان چې جاپان ته نژدې پراته دي په دغه هیواد پورې وتړل شوه. خو د سوق الجیشي لحاظه داوکیناوا ټاپوګان ډېر اهمیت ورباندې لري او د لته د امریکې هوائي جوړې شوې.

ددې ټاپوګانو (۸) ملیونه او سیدونکي چې د امریکا تر تأثیر لاندې وه، د امفکوره ورته پیدا سوه چې باید د امریکا د متحدو ایالاتو له خوا هلته اقامې اډې جوړې او هستوي وسلې ځای پر ځای شي.

تېر کال هغه وخت چې د امریکا او جاپان تر مینځ پدې سیمه کې د امریکا ئي اډې د تړون د اوږدېدو په غرض د جاپان پارلمان ته پیشنهاد وړاندې شو، د هغه هیواد د خلکو له خوا حسینې عکس العملونه مینځ ته راغلل.

اوس چې داوکیناوا د ټاپوګانو واک جاپان ته وسپارل شو په اوکیناوا کې د امریکا د اډوو جود ددواړو هیوادو د دوستۍ تر مینځ یوه لانجه ګڼل کیږي.

د ۱۷ مخ پاته

## نعت

چې پر تو پیره دې لیده وشا ؤ مخ ته هر شي
نور د باطن، باطن

ستا له فراقه څخه و چې ؤنې کاندې ژ ګیروي
کوي انین، انین

ددښت کبلیو لا منلې پیغامبر بې نبي
حاجت روا، روا

❀❀❀

بې مهربان تر حده تیر پر خپل امت باندې
ته یې کفیل، کفیل

چې هر سقه کې ې به د پیرو پر سخت ساعت باندې
درب خلیل، خلیل

په ورځ د حشر د امت شفاعتګر یې نبي
دربغ روا، روا

❀❀❀

کشکې مې ستا د قدم خاوري وای د رانجه د لیمو
ژاړم همیش، همیش

یامې لیمه وای هغه خاوري چې تا ګام پرایښو
یمه د لریش، د لریش

ته په قوله ؤ مخلو قاتو کښې بهتر یې نبي
زموږ پیشوا، پیشوا

❀❀❀

ته په قرآن کښې یې ستایلې د یاسین په نامه
فرد اکمل، اکمل

«رشاد» عاصي استعانت طلبي ستا له نامه
ستا په لامل، لامل

ګوندې پیدا کړې حقیقت ته ئې رهبر یې نبي
دې دې اعمی اعمی

---

د (۱٦ مخ پاته)

## داشو کا کتیبه ...

٤- هغو خلکو چې له ناپوهۍ نه ئې پخوا له دغو ناوړو کارو څخه لاس نه اخیستی خپل ناوړه عملونه ئې پرېښوول.

٥- د مور و پلار او حقې د پردو سپینږیرو لا فرمان وړونکي شوه او هر شوك به ئې په تقدیر او قسمت سره ملزم باله.

٦- قضاوت و پرهیزګار و خلکو ته نشته.

٧- و لې چې (دهرم) وټولو خلکو ته ګټور او د ښه نظر کتونکي دي.

د (۳۴ مخ پاته)

غلام محمد شاعر د بزمي شعر نمونه:

د اخوه د مینې یاره – لرم دې انتظاره – بې تا یم ناقراره
حجاب د مخه واخله یو نظر پر خپل مین که
ښکاره د مخ ګلشن که

زرغون شال دې پر سر کړی، په حنا دواړه لاسونه
پر مخ ایښي دې خالونه
په ګوتو دې ګوتمې کړې، په غاړه پهلوي کړې
د سرو زرو بنګړي کړې
د اتوي د اشنه خالونه دي اشناز ما په لمن که
ښکاره د مخ ګلشن که

سرخي دې پر لبانو، وهي عطر د ملتانه
ایښي دې خال د ایرانه
سیاه تور دې کاکل دي سپین مخ دې جل و بل دی
شیدا اورته مایل دی
زه ستا یم خریداره، تش پوښتنه په خوږ من که
ښکاره د مخ ګلشن که

رنیپ د زړه سرونه، تن دې بیا کړي سنګاره
سرخي وهي ګلناره
زما د زړه ناداري – تن و که څو خبري – راتوی که مرغلري
د سپین مخ په خولو دي تن تازه زما بدن که
ښکاره د مخ ګلشن که

قدم په ناز راواخله چې دي وو پنم چشماني
خماري دي مستاني
تل مست یم ستا په مینه تر ګل ګلاب رنګینه
زما یاره شیرینه
د وصل په میوو دي، زما تازه د زړه چمن که
ښکاره د مخ ګلشن که

شیدا دي په دوو سترګو غلام محمد یمه د لداره
رنګینه ګل نګاره
یم ستا په میو مسته بې تامي تاقت نسته
ناري وهم پیوسته
بیلتون له منځه لیري که بیا موډه مې په دیدن که
ښکاره د مخ ګلشن که

د ۱۳۲۱ کال د طلوع د ۹۳ ګڼې څخه

# له هرې خوا

د نیو فونډ په خلیج کې (۳۰۰۰) ډوله ماهیان سته او د هغې ټاپو د وګړو شغل د ماهیانو ښکار بلل کیږي او دد غو ماهیانو څخه شل راز خواړه پخوي.

❀❀❀

د امریکا په اوبو کې یو ډول ماهي دی چې څلور سترګې لري. دوې سترګې ئې سر پیره او دوې سترګې ئې لاندې دي. په لاندنیو سترګو په اوبو کې د ننه شیان وینې او په سر بیرنو سترګو د اوبو د باندې.

❀❀❀

د مځکې پر مخ (۶۵۰۰) ډوله مچمچي پیدا کیږي او (۱۳۰۰۰) ډوله الوتونکي او ماهیان دي. (۳۰۰۰) ډوله بې لرونکي حیوانات دي او تر اوسه نیم ملیون حشرات او خزندې پیژندل سوي دي.

❀❀❀

یو د پوهانو څخه د اعقیده لري چې وړانګه یعنې نور، هم خورا لږ وزن لري چې هیڅ ډول دقیق آلات یې درونډوالی نسي معلوم ولای. دې وایي که چیري

یو ګروپ چې سل شمع رڼا ولري، څو ملیونه کاله پر له پسې ولګول سي، نو هغه نور چې په دې زمانه کې څنې پیدا کیږي، یو اونس درونډوالی به ولري.

# د پوهانو وینا وې

څوک چې غواړي او ښکلي ور يې د عشق تخم دې وکري. (شیللر)

هر څه چې له زړه څخه فوران وکي بیرته و زړه ته سیلان کوی.
(ووډس ورتهه)

دژوندانه د حوادثو په مقابل کې ثبات او تحمل د نابغه والي لویه نښه ده. (بوفون)

کله چې د یوې قولنې څخه اتفاق او اتحاد کمبلې قولوی، بد بختي هلته وزرغوړوي.

(افغان)

زموږ د ولسوالیو او سیمو پېژندنه:

غلام فاروق «نورزي»

# پنجوائی د کندهار یوه سمسوره او تاریخي سیمه ده

**موقعیت:** د پنجوائي ولسوالي د کندهار د ولایت د جنوب لوېدیځ په (۲۸) کیلومترۍ کښې واقع ده.

د شمال خواته ئې د میوند او ژړي ولسوالي ختیځ لورته ئې ژړۍ، لوېدیځ پلوته ئې د میوند ولسوالي او جنوب ته ئې ریګستان پروت دی.

**نفوس:**

څنګه چې دا سیمه ډېره سمسوره ده نو ځکه په هر موسم کې لږتر لږه لس زره کوچیان په دغه

سیمه کې ژمی تېروي او ورځې تېروي، او په ځانګړي ډول د پنجوائي د ولسوالي دا او سیدونکو شمېر

شلو زرو تنو ته رسیږي د دغې سیمې او سیدونکي نورزي، پوپلزي الکوزي، کاکړان او اڅکزي دي چې زیاتره ئې په کرنه، باغدارۍ

او مالدارۍ بوخت او مالداران ئې پسونه او اوښان ساتي او څو کوره بلوڅان هم د مهاجرینو په

نوم د دې ځای په موشان کې اوسي او اکثره اوښان هم د دغو بلوڅانو دي.

**کرنه او باغداري:**

د پنجوائي سمسوره سیمه د یالو په واسطه د ارغنداو د سیند څخه او بېږي او پر څوخواوو ئې ښکلي غرونه دا ګر ځېدلي او د دغې ولسوالي ښکلا ئې ور زیاته کړې ده.

د دغې سیمې «۲٤» زره جریبه د باغ ځمکه او «۹۰» زره د کرنې ځمکه آباده ده او زیاتره باغونه ئې انګوري دي چې د دې ولایت او هم د ګران هېواد مهم صادرات تشکیلوي.

په شونو خاني کشمش او آبجوش هم دلته پیدا کیږي غنم او جوار دې زیات پکښې کرل کیږي څنګه چې د دغې سیمې او به د ارغنداو د رود ده څخه دي نو ښه

پالیزونه هم پکښې کیږي پنبه، ماش او تمباکو ئې هم د کرنې حاصلات دي.

د شالي کرنه چې وریجې لاس ته ځني راځي پوازې د کېهل په کلي کې کیږي او قسولها ئې په کال کې ۱۹۵۰۰۰۰- افغانیو ته رسیږي.

**مشهور کلي:**

پنجوائي پر «۲٤» کلو مشتمل دی چې مشهور او لوی ئې صالحان، صلوات زنګاوات، سپېروان، باشمول، کلکټ

سلارغه، تلوکان، موشان، اشوغه، ناخونی د پسورادسی، چل غور، ملادوست قاسم د باط اشرف، تلغام او کېهل دي.

**تاریخي سیمې:**

دا د کندهار د ولایت باستاني او تاریخي سیمه ده چې زموږ په باستاني تاریخ کې ئې «د مورداسي غونډۍ» چې د یوناني دورې هم عصره ده د پنجوائي په ۸ کیلومترۍ کې پرته ده او د پرشهرت او څو زره کلن تاریخ لري شمشیر غار چې افسانوي تاریخ لري د پنجوائي په (۵) کیلومترۍ کې د مار په غره کې چې یو طبیعي او نامتو غار دی او هیڅوک تر اوسه پورې په دې موفق شوي نه دي چې د دغه غار پای ته ورشي که څه هم

ځیني خلک تر «٤۰» او (۵۰) مترو پورې غار ته ور ننوتلي دي.

وائي چې ابوالفتح بستي د غزنوي عصر مشهور شاعر او لیکوال چې په پېړۍ کې د لښکرګاه څخه غزني ته تللی ځو شپې ئې په پنجوائي کې تېرولي

د غزنویانو تاریخ او بیهقي دغه موضوع یاده کړې ده.

د چلغور د کیندنې حوزه چې دري نیم زره کلن تاریخ لري.

**د چل غور د غونډۍ کیندنې:**

د چل غور غونډۍ د کندهار د ولایت د پنجوائي د ولسوالي په یوه برخه کې واقع ده موقعیت ئې د شمال له خوا قلعه

سیداو د جنوب له خوا ئې د صلوات غونډۍ یا صلوات غار د ختیځ خواته ئې د مهاجرینو غونډۍ او لوېدیځ خواته ئې بالاده پرته ده.

د ۱۳٤۹ کال د سلواغې په میاشت کې

(مخ ۳۰)



## د برونز د دورې يو خاورين لوښی، يو ډېر ښکلی مهر او يو د ډبرو لوړد لاستي سره چې د چل غور په سيمه کې لاس ته راغلي دي.

د يوه تن جيمز امريکايي لرغون پېژندونکي او د اطلاعاتو او کلتور د وزارت د لرغون پېژندنې د لوی مديريت د غړي ښاغلي احسان آرام له خوا په چل غور کې کيندنې وشوې او دوی داسې ليکي:

په تيرو لسو کلونو کې د غه سيمه د نورو سابقو نو سره چې پر شاوخوا يې د اګر ځيدلي دي د امريکايي لرغون پېژندونکو له خوا سروې شوې وه او د لومړي ځل د پاره (جيمز شيفر) د دې غونډۍ په کيندنو او څېړنو پيل وکړ.

د نوموړې دورې کيندنې د ډېرو (برونز) په دوره پورې اړه لري.

د دې غونډۍ کيندنې په عمومي ډول شروع شوې او وروسته له يوې مياشتې د ديوالو او د هغه د خونو دوه د اتو لو د طرز په موندلو بريالي شول د غه ديوالونه د پاخه د اې ځخه جوړ شوي وه او وروسته د کيندنو په وخت کې سپين خطونه مخ ته راغله هر کله چې خطونه يې سره يو ځای کړه د خښتو د شکل يې غوره کړ خو ځرګنده شوه چې د زمانې په تيريدو سره يې د سپين خط شکل غوره کړی دی او دې شي د غه کار يوه اندازه آسانه کړ.

دا ديوالونه په بيلو شکلو سره دي چې يوه کوټه د بلې سره نښلوي او پسې دې توګه د نوموړې سيمې ځخه لس کوټې لاس ته راغلي دي.

اوس په ځه ډول پوهېدای شو چې د غه ديوالونه په کومه دوره پورې اړه لري. کشف شوي آثار لکه تيکريا کو دري د افغانستان د ډېرو د دورې په ځير مزين شوي پيکه نسوادي رنګ لري.

د برونز نوک لرونکي قوقی قلمونه، چاقوګان او غوڅې چې د ډېرو ځخه جوړې شوې دي، ډېرې ښکلي دي.

د غه آثار چې موږ د دغې سيمې ځخه لاس ته راوړل ثابته شوه چې ديوالونه او دغه رنګه خپله سيمه د برونز په دوره پورې اړه لري.

بايد وويل شي چې د کيندنو په لړ کې ۳۰ قبرونه هم د لته پيدا شوي دي چې د دغه قبرو د لاسته راغلي آثارو ځخه هر يو يې

د برونز د دورې ځخه يو لو. آثار لکه غمي، ګوتمې، په سره رنګ کشف شوي دي ځای چې عقيق وي او په بيلو بيلو رنګونو کوچنۍ او لوی مرۍ د دغه ځای ځخه لاس ته راغلي دي او د دغو څېړنو او کيندنو ځخه ځرګنده يږي چې د چل غور غونډۍ يونيم زر کاله د مخه تر ميلاد د ډېرو په دوره پورې اړه لري.

د اشوغې او د ببراسې کنډوالې يې تر او سه هم شته په د غه هکله زموږ ځينې محققين نظر په ځرګندوي چې د اشوغې نوم د اشوکا له نامه ځخه راوښتی دی او يو دليل يې دا دی چې د هغه په شاوخوا او په تيره بيا د ننې په علاقه کې د ګريک و بوديک ځينې آثار ليدل شوي دي چې

يوه او به نمونه يې د سر پوزې ډبرينه کتيبه ده چې د اشوکا په نامه شهرت لري.

وائي چې د ببر اسې نوم د (د ببر باس) ځخه اخستل شوی دی او دا د باختري کورنۍ يو لوی پاچا وو.

### دوداو دستور:

د دې سيمې دودونه او د فاتحې مراسم د کندهار د نورو سيمو په ځير د تکليف نه ډک او زيات لګښت ايجابوي او ځوک چې وس لري په ودونو او ښادي يو کې زياتې پيسې خرڅوي د دې سيمې د نجونو ولور په متوسط ډول ځلوېښتو زرو افغانيو ته رسيږي او د ناوې خوا

(پاته په ۳۴ مخ کې)

پښتو کوټنګی :

احمد «راشد»

# سانسور په نشراتی وسایلو کی

که د سانسور تاریخ ته وګورو، په تعجب سره به وو ینو چی تقریباً دغه پرنسیپ همیشه په

بشری ټولنو کی موجود دی، او تر څو چی زموږ د اعصابو ماشین متشابه آرا او افکار په انسانی ټولنو کی منځ ته راوړه ی،

سانسور به همیشه وجود ولری. خو زیاتوالی او لږوالی یې د یوې ټولنې څخه نسبت بلې ټولنې ته توپیر کوی.

د انګلستان لوی فیلسوف او برجسته متفکر برتراند رسل عقیده لری «سانسور په هغو

هیوادو کی چی خلک یې زیات تعصب لری ډیر ایډل کیږی او برعکس په هغو هیوادو کی چی تعصب د علم او پوهې د پراختیا په

نسبت محدود شکل ځانته اخیستی وی او خپل ځای یې تحمل ته پرې ایښی وی، په هغه ځای کی آزادی

زیاته او سانسور ډیر لږ ایډل کیږی.»

تر کومه ځایه چی څرګند ه شوی ده، سانسور تل د اکثریتود

خوا پر اقلیتونو او یا د زورورو له خوا څخه پر کمزورو باندی عملی شوی دی.

که یو سړی په یوه جزیره کی یوازی او یوازی او بیله دی چی د کوم انسان سره تماس ولری

او یا دا چی د کوم حیوان سره په تماس کی شی په هغه وخت که به نو دغه سانسور منځ ته رانه شی خو هر کله چی د یو بل چا سره

یې تماس پیدا کې او یا یې کوم حیوان د ځان ملګری کې په هغه صورت کی سانسور په خپله عامه معنی منځ ته راځی.

تر هغه وخته پوری چی «رابن سن کروسو» په خپله جزیره کی یوازی ؤ سانسور نه ؤ موجود، خو هر کله چی «فرایډې» ورسره یوځای شو، سانسور شروع شو.

سانسور تر داسی اندازې پوری عمومیت لری چی ځینی وختونه یو سړی مجبوره کیږی چی د ټولنې د تعامل

سره سم خپل ځان هم سانسور کی. هر کله چی و غواړو کالی واغوندو، ډوډۍ وخورو او یاد کوم ملګری سره خبری وکړو، تل دې خبری ته متوجه یو

څو زموږ خبری او حرکات د هغو حدودو څخه چی کلچر او تعاملات اجازه ورکوی د باندی و نه وزی، د غه احتیاط د دې خبری

په ښه توګه څرګندونه کوی چی موږ پخپله ځان سانسور کړی دی.

بشر په ځانګړې او یا په ایزه توګه د ارزښتونو او مقیاساتو

درلودونکی دی چی یا د عادت او تعامل په نسبت او یا د ازموینو له امله د هغو سره علاقه لری او هغوته یا ښه او یا بد نوم

ورکوی. انسان د همدې ارزښتونو په پیروی، ځینی حرکتونه او خبری

خوښوی او مجازی یې بولی او ځینی بیا نامطلوب به بولی او نه یې خوښوی. کله چی د دې قدرت

پیدا سی چی خپل ارزښتونه ومنو هغه وخت سانسور تر بحث لاندی راځی.

په هغو هیوادو کی چی بیلی بیلی ټولنې یو د بله څخه لیری ژوند کوی، نو دغه ټولنې بیل بیل کلچرونه لری او هره ټولنه د

خپلو ارزښتونو په مقایسه، د نورو ارزښتونه تر قضاوت لاندی نیسی او هغه یا مطلوب یا غیر مطلوب

بولی. دغه اختلاف په پرمختللو هیوادو کی چی په هغو کی د نشراتی وسایلو څخه ټول خلک ګټه اخلی ورځ په ورځ محدودیږی. خو

په مخ په ترقی هیوادو کی چی د عامه اطلاعاتو وسایل عام شکل ځانته نه دی اخیستی د ارزښتونو اختلاف،

قضاوتونه تر تأثیر لاندی راولی او په دغه ترتیب د سانسور د پرنسیب څخه زیات کار اخیستل کیږی.

دا چی سانسور ښه دی او که بد، یوه بیله موضوع ده چی فلسفی مناقشاتو ته اړتیا پیدا کوی او شرحه یې د لته نه ځاییږی.

په نسبتی توګه ویلای سو چی د سانسور شدت د وخت په تیریدو

باقی په ۳٤ مخ کی

سره لیږي او د قوانینو منع ته د اتلل تر زیاتې اندازې پورې د نشراتي وسایلو سانسور د منځه

وړي او آزادي یې منع ته راوړي د مثلاً د انګلستان د اوه لسمې پېړۍ

فیلسوف توماس هابس سانسور لازمي بللی او په دغه باب یوه نظریه

لري چې د «ها بیزم» د دا کتر ین په نامه یادیږي. د دغې نظریې سره سم

باید خلک د حاکمې قوې څخه په

پوره ډول اطاعت او فرمانبرداري

وکي او هره هغه حرکت او خبره چې د دوی د نظر مخالفه وي سانسور

او منع کیږي.

د بلې خوا د انګلیستان د نونسمې پېړۍ فیلسوف او اقتصاد

پوه جون ستوارټ میل د دوهم

کاله ور وسته تر هابس په هغه مقاله

کې چې د ازادۍ په باب لیکلې وه

داړنګه یې ویلي دي: «که ټول

انسانان یوه نفره څخه د یوې

عقیدې در لوونکي وي، او هغه یو سړی د دوی د عقیدې سره

مخالفت ښکاره کي، ټوله انسانان

هیڅ حق نه لري چې د ی منع کړي

او د ده ته وو ایې چې څه مه وایه.

دغه رنګه هم دغه یو نفر حق نه لري

چې ټول انسانان له عقیدې

څرګندو لو څخه منع کي». د دوي

لوړې نظریې یو د بله زیات تو پیر

لري. په مطلق ډول یوه نظریه

په قطعي ډول د ازادۍ طرفداره

ده.

په هر ترتیب د سانسور شدت

د ملي او بین المللي مراوداتو،

مفاهماتو د پرمختګ په اثر تر یوې اندازې

لږ والی پیدا کی. خو د غه پرنسیپ

تراوسه پورې هم موجود دی او ښایي

تر څو سوو نورو کلو پورې هم موجود

وي. حتی یوه ډله خلک عقیده لري چې

په راتلونکي وخت کې به سانسور بو ځل

بیا د لوړ تیا خواته میلان پیدا

کړي.

نشراتي سانسور تقریباً په هر ځای

کې ایډیل کیږي چې زموږ ګران هیواد

هم د هغه څخه مستثنی نه دی. البته

غیر مطلوب خپرونې او فلمونه د سانسور

وړ دي. خو هغه سانسور چې موږ یې عملي

کوو، د پوهه حس او ارزښت پر اساس

باندې بنادی چې د سانسور هیأت د هغو په

پیروي عمل کوي.

د څو تنو ارزښت باید د ټوله ټولنې

نمایندګي وکړي.

ځینې وختونه داسې هم پیښیږي چې

د هیأت څخه یو تن پر نورو غږو باندې

عقیده تحمیلوي چې په دغه ترتیب یو سړی،

خپل شخصي ارزښ د ټولنې ارزش بولي. که

څه هم زموږ اساسي قانون د اجتماعي ارزښتونو

مهمې کرښې تر یوې اندازې پورې روښانه

کړي دي، خو په اوسنی شرایطو کې زموږ

اساسي قانون او یادنې ې اساسي قانونو په

هیڅ ډول د ارزښتونو نه شمیر یدونکي فرعي

خطوط نه ټاکلي او نه یې ټاکلای سي.

نو د نشراتي وسایلو د سانسور هیأت

باید ځینې مقیاسات ځانته و ټاکي څو د هغو

په اساس په یوه اسانه توګه د سانسور

پرنسیپ په مترقي وسایلو کې تر اجراء

لاندې و نیسي. د غه کار یو اسانه کار نه دی

او زیات وخت او زحمت ته اړ تیا لري.

په لومړۍ مرحله کې باید زموږ

افغاني کلچر ته نظر کې و نیول سي

او د هغه د لومړیتوب او برترۍ

په باب باید زیاته څېړنه وسي.

وروسته له هغه باید د جزئي د

پېښو او شیانو څخه هغه کلیې چې

د هغو د شمول احاطه پراخه ده منځ

ته راوړل سي. او په هغه وخت کې

د دغو کلیو څخه کولای سو چې د

بین المللي او یاملي خپرونو په

باب نسبتاً عادلانه قضاوتونه تر

تطبیق لاندې و نیسو.

د ا یه ځینې د دغه کلیو څخه

چې د نړۍ په پرمخ تللو هیوادو کې

رواج دي د ګرانو ږو نکو مطالعې

ته وړاندې کیږي.

تر هر څه لومړۍ به باید د یوې

ټولنې د تعصب او تحمل په باب تر

وسه پورې د علمي او مستندو پلټنو

له مخې او ارزیابي مطالعه وسي.

د دغه مقیاس په ټاکلو سره هر ډول

نشراتي وسایل چې د هغو محتویات

د خلکو د اکثریت تر تحمل د باندې

وي، کولای سو تر سانسور لاندې

و نیسو.

بل دا چې د نشراتي وسایلو

محتویات باید مطالعه سي. که

د هغو اصلي هدف د سانسور قابلیت

و نلري، ځینې جملې او یا فرعي

پراګرافونه چې د هدف د روښانو لو

په غرض په کار یې وړي په وي چې مجاز

و بلل سي.

دغه رنګه که نوموړي مواد

د خلکو د اکثریت د قبلیدو وړ و نه

ګرزي. په هغه صورت کې باید

سانسور عملي سي.

(پاته په ٣٤ مخ کې)

د (۳۱مخ پاتې)

## دولسوالیو پېژندنه ...

دواده په شپه پرته له زوم څخه د زوم نور دوخپلوانو ته هم نوې جامې دخلکو په مخ کې وراغوندي.

دپښتو کیفه بنګړي، غاړکۍ، غوږوالۍ او ګوتمۍ ده او ښځې یې په سلو کې ۹۰ د ګنډلو په چارو کې مهارت لري، ځینې نارینه یې کوارې جوړوي.

### بازار او دکانونه:

پنجوائي یو کوچنی بازار لري چې تقریباً ۸۰ دکانونه لري او هر ډول مالونه پکښې خرڅیږي د کانونه ئې دښار په څېر ښکلي او په عصري ډول نه دي جوړ شوي، دلته یو درملتون هم شته. د پنجوائي ولسوالۍ یو صحي مرکز هم لري.

### میلې او ساتیري:

د دغه سیمې خلک دنورو کندهاریانو په څېر د میلې او ساتیرۍ ډیر شوقیان دي، په کوچني او لوی اخترو کې هر کال پنځه ورځې په شیخ قلندر کې لویه میله کیږي چې د کندهار او شاوخوا ډیر خلک ورځي.

د دغې سیمې ښځې په دواړو اختر کې میله کوي.

### شیخ قلندر:

د پنجوائي مشهور زیارت دی چې د ولسوالۍ څخه ۲ کیلو متره د جنوب — لویدیځ خواته پروت او دمغولو معاصر دی، د دغه زیارت ته د دغه ځای د شاوخوا سیمو څخه زیات کسان ورځي.

### پوهنه:

په پنجوائي کې معارف انکشاف کړي دي او اوس د هلکانو دوې منځنۍ ښوونځی (۸) ابتدائي او ٤ کلیوالي ښوونځي لري او د ټولو متعلمینو شمیر ئې (۳۰۰۰) تنو ته رسیږي او د (۷۷) تنو ښوونکو له خوا درس ورکول کیږي.

(پای)

## د حضرت علي (رض)

ته ویناو څخه

څوک چې خپل کسب زر، زر بدلوي د اسې مثال لري چې د یوې ونې ځای زر، زر بدل شي او په پای کې وچه شي.

د (۴۳مخ پاتې)

## سانسور او نشراتي ...

سربیره پردې علتونو او عواملو باندې د مؤلف نیت هم باید د نظره څخه لیرې نه کړو. یو مؤلف د یوې خپرونې او یا قلم په جوړولو کې نیک او صمیمانه نیت و لري، د هغه سانسور ته هیڅ ضرورت نه سته، خو که د ده اراده ښکاره او یا صمیمي نه وي، د هغه په سانسور کې زیاتې پاملرنې ته ضرورت سته. چې د توجه د جلبولو سبب ګرځي. خو دلته مطلب دا دی چې سانسور باید پر علمي تحقیقاتو باندې ولاړ وي او د هغو تطبیق باید د باخبرو خلکو د خوا څخه چې د کلچر او د خلکو د ارزښتونو په باب معلومات لاس ته راوړي وي، عملي کړل شي.

(د اصلاح څخه)

## د موسیقۍ ارزښت

دا څرګنده خبره ده چې موسیقي د ټولو هنرونو په منځ کې زیات ارزښت لري او دا هم څرګنده ده چې د موسیقۍ په واسطه ډیر مجهول او نه پوهیدونکو مطلبونه موږ ته ښکاره او برملا کیږي چې د یو رمز په څېر کې د دې یې ته پرته د دنیا رازونه ښکاره کوي

همدغه راز که د ژوند پاڼه مو به زده کې وي نو موسیقي ته نوي رنګ ور کړي یې په نوي آهنګو سره د نوي دنیا په خیالاتو پوهیږي

ځکه موسیقي د نوي رنګ په اړلو سره زموږ د کتو ذکا او حس استنباط او زموږ د غور او پلټنې قوه ډیره وي.

(افلاطون) وائي: چې تاسو ډیر د روند د روح زما په اختیار

دا کړي بدي او زه کولای شم چې

د موسیقۍ په زور د غه روح د حیرانتیا او درندوالي څخه لیري وساتم او

په یوه زړه ور او پوهه یې ئې تاسو ته

بدل کړم رښتیا چې موسیقي د روح غذا ده او د دغې تغذیې په واسطه کولای شو خپل روح ته آرامتیا

ور کړو او د خپلو ورځنیو کارونو د سرته رسولو لپاره خپل روح خوښ وساتو څو خپل کارونه په

ښه ډول مخ په وړاندې بوزو.

د غلام صفدر پنجشيري ليکنه:

پښتو کوونکی کريم:

# فلسفه څه شی ده؟

داوږدې دې چې فيثاغورث لومړنی انسان ؤ چې د فلسفې کلمه يې استعمال کړه تر څو د هغه په وسيله د فيثاغورثي ټولنې غړی له نورو وګړو څخه وپېژني. ده انسانان د دوی د ميل او رغبت له لحاظه په درو برخوو ويشل:

۱- يوه ډله عبارت د هغو کسانو څخه وه چې د خپل ميل او غوښتنې په اساس يې د مادي منفعت د تحصيل په غرض کار کاوه، لکه سوداګران او بزاګرن.

ب- بله ډله هغه کسان وه چې د شهرت او افتخار تر لاسه کولو د پاره ئې دوې و کار ته ګمارل لکه نظاميان او سياستمداران.

ج- دريمه ډله د هغو کسانو څخه متشکله وه چې يوازې او يوازې د حکمت تحصيلول يې هدف ؤ او د هغه څخه يې د غايه بالذات په توګه ګټه اخستل نه د کم بل هدف د پاره د وسيلې په توګه او فيثاغورث د غه ډلې ته منسوب ؤ.

په هغه وخت کې چې افلاطون د فلسفې لفظ استعمال کی د هغه منظور دا ؤ چې د خپل استاذ سقراط د طريقې او سوفسطايانو د روش تر منځ توپير راوړی او دغه ډله

ګرځنده ښوونکي وه چې ځان ته ئې حکماء و يل او خپل حکمت ئې د مادي ګټې په بدل کې خلکو ته ښووی او حکمت ئې و مادي هدف ته د رسېدو د پاره وسيله ګرځولی وه. خو سقراط د کمېنې په منظور ځان فيلسوف او د حکمت

او پوهې دوست ګاڼه او فلسفه ئې غايه بالذات بلل نه و سيله د شتمنۍ او شهرت.

ددې موجزې وينا څخه دا سې څرګندېږي چې د تاريخ په هغه پېړيو کې چې بشري فکر د فلسفې لفظ استعمال

کړی د هغه څخه ئې يو ډول عقلاني فعاليت منظور ؤ چې د نوی معرفت د لاس ته راوړلو د پاره يې صورت موندی او د عقلي لذت د غوښتنې په اساس يې د حقيقت پلټنه کول، بېله دې

چې د ژوندانه عملي مطالب يا د ېنې معتقدات هغه فعاليت لره سبب شي.

د فلسفې د بحث موضوعات او دغه ډول نګه د هغې غايه په ډول لوېيي يو کې يو ډول نه ده او فيلسوفانو يا فلسفي مکتبو د فلسفې په هکله خاص نظر درلود.

## د فلسفې موضوع:

فلسفي د ايوني او ايليايي مکتبو له نظره چې د وه معاصر فلسفي مکتبونه وه، د طبيعت څخه بحث کاوه له دې امله ددې دورې فلسفه د طبيعي فلسفې په نامه يادېږي او د هغه فيلسوفانو ته لومړني طبيعيون وائي. خو د سقراط په

زمانه کې چې و يل کېږي فلسفه يې د آسمان څخه مځکې ته راوسته، فلسفي تفکر د انسان په باب بحث ته ورواوړول سو او ارسطو فلسفه په دا سې معنی استعمال کړه چې ټول نورع د علم مفهوم د هغه څخه اخيستل کېږي.

فلسفې په اوسنی عصر کی د بشري معرفت ټول ډولونه په بر کی نيول، خو د زمانې په تېرېدو سره کرار کرار نور علوم د فلسفې څخه جلا سول، او وروستني علوم چې د خپلې مور (فلسفې) غېږه پرېښول د نفس او اجتماع علوم وه. يعنې فلسفې کرار کرار خپله پراخه او رښتو د لاسه ورکړه او دغه امر ددې سبب سو چې يوه ډله مفکران و وايي:

هر کله چې و کولای سو ای يوې پوښتنې ته تجربې او ازمويلی جواب ورکړو، هغه مسئله د فلسفې د اورښو څخه وزی او د علم ساحې ته داخلېږي او د دغه نظر په اساس

د اوسني وضعي منطقي Logical Positivism مکتب پېروان فلسفه د افکارو منطقي توضيح بيانوي. ددې خبرې معنی دا نه ده چې فلسفه بالکل د موضوع څخه نيست منه سوې

ده بلکه د هغه معنی دا ده چې هر څو نه چې د علم لمن پراخېږي په هغه اندازه د فلسفې اورښو تنګېږي پر دې اساس که د فلسفې د بحث موضوع په نظر کې و نيول سي او د منطق

د علماو و دو ينا سره سم يو جامع او مانع تعريف د فلسفې د پاره داوړو چې په ټولو اعصارو کې صادق وي، نو په يوه محال او متعذره کار به مولاس پوري کړی وي.

(نور بيا)

# په نړۍ پوري خبرونه

## په کندهار کې :

د دې میاشتې د څجا په ۲۰ ورځه یوه هم د دوو افغانانو له خوا د څلورو تنو فرانسوي ځوانو پیښانو وژل دي.

دا واقعه د نورد ډینګلسمې نېټې په شپه د ارګونو په کوڅه کې د حاجي عبدالله جان په کور کې پېښه شوه، په دې ډول چې خیرالله د حاجي عبدالله جان زوی او عبدالغفار د عبدالستار زوی د خپلې خاصې دسیسې په نسبت څلور

کسه فرانسوي ځوان پیښان د خیرالله کور ته بوتلل، او دوستانه له هغه چې دوی یې دزیاتو چرسو په څکولو نشه کړل، د چاړې په ذریعه یې ووژل:





خیرالله قاتل     عبدالغفار قاتل

څلور تنه ځوان پیښان چې ترمونه یې ژیفرا، لیوکت، نیکولایس او بلیکر یږدی، تر طبي کتنو وروسته کابل ته یووړل شول.

د امنیه قومندانۍ د خبر سره سم خیرالله او عبدالغفار نیول شوي او په خپل جرم ئې اقرار کړی دی.

## په لویدیځ آلمان کې :

لاندې عکس په دې وختونو کې د کال د بهترینو عکسو په مسابقه کې دریم مقام تر لاسه کې او د هغه عکاسي کوونکي د طلایي دوربین جایزه وګټله.

په دې عکس کې تاسې یو «قو» وینئ چې خپل بچی یې په شا اخستی او د «تګرن زی» له سیند څخه چې د لویدیځ آلمان په جنوبي سیمه کې پروت دی، پوري باسي او په

دغه توګه هغه د سیند د څپو او ګووبیدو له خطره بچ کوي.

د «تګرن زی» سیند د اروپا د ښکلو سیندو څخه شمېرل کېږي چې د امریکایي او اروپایي میلیونرانو، کېښتی چلوونکو او سکي بازانو د ساتیري ځای دی. په دې سیند کې تر ۲۰۰ زیات تود او سپین قوګان او ۲۴۰۰ هیلی په آزاد ډول ګرزي.



## کندهار :

په دې ورځو کې یو دیار لس کلن هلک د کاغذباد الوزولو په وخت کې د بامه د اولو یدی او د و غړمې پاته سو، خوخپله میره یې سخته ټپي کړه.

دغه هلک چې حبیب الله نومیږي د احمدجان زوی د کندهار د نوی ښار او سیدونکی دی، ده په داسې حال کې چې کاغذباد یې هواته لوړ او او د شا پرخوا رهي ؤ د بام څخه را او یدی. په دې ترخ کې د هلک میره د ستني په کار اخته وه چې نا ببره هلک د هغې پر سر ونښتي او سخته ټپي شوه، په دې ډول هلک د وغړمې پاته شو.



په کندهار کی د اینه مصحف د دود یوه منظره چی تا هلوئی ښاغلی تپاند رسم کړی ده



داعلیحضرت تیمورشاه دعصر دمیرمنو دابری
یو چرمه‌لرونکی کمیس
(دکندهار دموزیم څخه)

دکندهار دولتی مطبعه